# څرک

شپاړسم کال، پنځمه، پرلپسې ۱۱۸مه ګڼه،

سرطان – اسد ۱۳۹۹ل، ذي القعدة۱۴۴۱هـ ق، جولای۲۰۲۰م

- هو! دخالص بابا ﷺ یاد پرلمانځلو ارزي!
- د بندیانو پروسه باید تکمیل شي!
- جنګي جرمونه جنایت که اتلولي ده ؟!
- ترکیه د خپل اصالت پر خوا ستنیږي

## د نیکمرغه لوی اختر په مناسبت د عالیقدر امیر المؤمنین شیخ الحدیث مولوي هبة الله اخندزاده (حفظه الله) د مبارکې پیغام

## د دوحې د تړون له مخې د امریکایي اډو تخلیه روانه ده !!

بدر الفتاوی دریم جلد...!

## آیا صوفیا پر جومات بدلیدل

د کفارو غندنه او د مسلمانانو چو پتیا !



له شیخ الحدیث مولوي محمد عمر جان او پیاوړي لیکوال مولوي شمس الله کمالزاده سره د څرک ځانګړې مرکې

# ځرک

علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

شپاړسم کال، پنځمه، پرلپسې ۱۱۸مه ګڼه، سرطان-اسد ۱۳۹۹ل،
ذي القعده۱۴۴۱هـ ق، جولای۲۰۲۰م


## لړلیک




**امتياز :**

**دا متيازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

**مسؤل مدير :** عبيد تنوير

**ليکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حميد ، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلداري |
| امريکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ يورو |
| يوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>٦۰ کلداري |

**يادونه**

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

تخنيکي چارې: تخنيکي څانګه



پته :

srak_111@yahoo.com

سرمقاله







# د دوحې د تړون له مخې

## د امریکایي اډو تخلیه روانه ده !!

له څو محدودو او د خدای په وعده باور لرونکو مؤمنانو پرته بل چا ګومان نه کاوه چې یو وخت به پـر افغانسـتان بریـد کـوونکی نړیوال ایتلاف په ګونډو کېږي او د مخکینیو یرغلګرو په څېر به پښې سپکوي .

نولس کاله وروسته، هغه خلک اوس ویني چې انګېرنه یې ناسمه وه. له څو ناخلفو پرته، رښتینو افغانانو د تسلیمۍ لاسونه پورتـه نه کړل او د یرغلګرو یاران نه شول، بلکې د مقاومت د بیرغ په پورته کولو سره یې د خپلو پلرونو او اجدادو پر پلونو پـل کېښـود. وسـله واله مبارزه له شکه پرته له درنو قربانیو سره مل وه، خو همدا قرباني وې چې نن موږ له خپلې خاورې په څوړنـدو سرونـو د یرغلګـرو د وتلو شاهدان یو .

لله الحمد، وینو چې اشغالګر په چټکۍ سره خپلې اډې تخلیه کوي او په تخرګونـو کـې د بیرغونـو پـه نیولـو سره مـخ پـر خپلـو هېوادونو درومي .

په دې ورستیو دو اونیو کې دهیواد په کچه امریکایانو څلور مستحکمې اډې تخلیه او جنرالانو یې څرګنده کړه چې دا کـار یـې د دوحې دتاریخي تړون سره د وفادارۍ او ژمنتیا له مخې کړی .

له ویاړمن افغانستان څخه دامریکایي قواوو په دغه ډول وتل دکابل رژیم اوهغو لپاره چې دامریکا دغلامۍ څنځیرونه یـې پـه غـاړه کې اچولي وو حتی تصور یې هم نه وو کړی ؛ ځکه دوي وئیل چې امریکا چیرته ولاړه شي بیرته یې وتل نشته !!

خو مؤمنان هغه وخت هم وو چې د خدای جل جلاله د نصرت په وعده یې پوره ایمان و او د ذرې برابر شک یې پکې نـه و. دا د خدای په نصرت د دوی باور و چې د نږدې دوو لسیزو سترې مزل ستومانه نه کړل. د افغانستان مقاومت یوځـل بیـا د نـړۍ ولسـونو تـه الهام ورکړ چې حق به تل بریالی وي – ولوکه ټوله نړۍ یې پر ضد ودریږي. ان شاء الله تعالی




# شیخ الحدیث مولوي هبة الله اخندزاده (حفظه الله)

# د مبارکي پیغام

بسم الله الرحمن الرحیم

الله أکبر الله أکبر، لآ إله إلا الله والله أکبر، الله أکبر ولله الحمد

إن الحمد لله نحمده ونستعینه ونستغفره، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا ومن سیئات أعمالنا من یهده الله فلا مضل له، ومن یضلل فلا هادي له، وأشهد ألا إله إلا الله وحده لا شریك له،وأشهد أن محمدا عبده ورسوله صلی الله وسلم علیه وعلی آله وصحبه أجمعین، أما بعد:

قال الله عزوجل: قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعٰلَمِينَ. [سُورَةُ الاٴنعَام : ۱۶۲]

**د افغانستان مسلمان ولس، مجاهدینو، د شهیدانو کورنیو، معلولینو، بندیانو او ټول اسلامي امت ته!**

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

تر هرڅه وړاندې تاسو ټولو ته د لوي اختر په مناسبت مبارکي وایم، له الله تعالی څخه سوال کوم چې ټولې قربانۍ، جهادونه، هجرتونه او د اسلام لپاره ستړیاوې مو په خپل در بار کې قبولې کړي، د شهیدانو دې الله تعالی شهادتونه قبول کړي، بندیان دې الله تعالی له بنده را آزاد کړي، د غمجنو کورنیو دې الله تعالی غمونه په خوشحالۍ بدل کړي او د یتیمانو دې ښې پالنې او روزنې لپاره دې الله تعالی ښه زمینه مساعده کړي. آمین یارب العلمین

**مجاهدینو ورونو!**

د هیوادوالو امنیت، د هغو له ځان، مال، عزت او ګټو څخه دفاع د خپل ځان عملي وجیبه وګڼئ، د ملکي خلکو له ژوند سره نهایت ډیر احتیاط وکړئ، د خلکو ترمنځ د دعوو او جنجالونو د حل او فصل لپاره د محاکمو او ذي صلاح اداروسره په مرسته کې خپله ټوله سعې وکړئ، د لویو لارو د امنیت ساتلو، د تجارانو

لپاره د اموالو د انتقال په وخت کې د سهولتونو رامنځته کولو او له هغوی سره د ښه چلند لرلو په برخه کې جدي پاملرنه وکړئ.

څرنګه چې د الله تعالی په نصرت او ستاسې په بې دریغه سربښندنو او قربانیوسره د اسلامي نظام د راوستلو په درشل کې یو (ان شاءالله العزیز وماذالک علی الله بعزیز)، نوخپل صفونه لاقوي او منظم کړئ، خپل منځي یو والی مو لا پیاوړی کړئ، ځکه دا هرڅه د یو والي او اتفاق نتیجه ده، اطاعت او تقوا ته لاهم ډیره توجه وکړئ او د الله تعالی شکر اداء کړئ او له هر ډول هغه حرکت او ویناوو څخه چې الله تعالي پرې ناراضه کیږي ډډه وکړئ، ځکه چې دا کامیابي په ناکامي بدلوي.

**افغان مجاهد ولسه!**

زموږ جهاد د اشغال د خاتمې او د سوچه اسلامي نظام د اقامې لپاره وو او دی، ځکه نو خپل مجاهد او کړیدلي ولس ته ډاډ ورکوو چې د دوی له آرمانونو سره به جفا نه کیږي ان شاءالله تعالی، واضح پیغام مو دا دی چې د قدرت انحصار نه غواړو، د افغانانو ټول قومونه او پرګنې یوه او بل ته ضرورت لري؛ بلکې د اسلامي نظام تکامل، خپلواکي او قوت دافغانانو په اتحاد او اتفاق پورې تړلی دی، اسلام موږ ټولوته د اسلامي ورور ولی، امانت داری او کار اهل کار ته د سپارلو امر کوي، د ولس هر وګړی حق لري چې د ژوند دټولو حقوقو او امتیازاتو څخه ګټه واخلي او سیاسي او ټولنیز حیثیت یې د اهلیت او تقوا پر بنسټ وټاکل شي.

افغانستان د ټولو افغانانو ګډ کور دی د دغه کور ابادول، د دیني او ملي ارزښتونو ساتل، او له خپلواکۍ او ځمکنۍ بشپړتیا څخه یې دفاع کول د هر افغان مسؤولیت دی.

زموږ او ستاسو روانه مبارزه د پورته اهدافو لپاره یوه وسیله ده، که دغه ستر هدفونه په خبرو او مفاهمې سره تر لاسه شي، موږ یې پلوي یو او صادقانه او جدي خبرې اترې د ستونزو د حل یوه اساسي لاره بولو.

موږ له چا سره ذاتي دښمني نه لرو، بلکې د هېواد د خپلواکۍ اویوه سوچه اسلامي نظام د قیام لپاره مو وسله پورته کړې ده، د پورتنیو اهدافو د پوره کیدو په صورت کې له ټولو سره سوله ایز ژوند غواړو.

**د بین الافغاني مذاکراتو په اړه:**

له امریکایانو سره په دوحه کې د تړون لاسلیک، بیا وروسته د بین الافغاني مذاکراتو لپاره کوښښونه هغه څه دي چې اسلامي امارت یې په اړه خپل مسئولیت ادا کړی دی.

اوس په نورو جهتونو پورې اړه لري چې څومره له دې مهیا شوي فرصت څخه سمه استفاده کولای شي.

د بندیانو تبادله چې د زرګونو هیوادوالو او غمځپلو کورنیو د خوشالۍ او ډاډ سبب شوه، یو مهم پرمختګ و چې باید مقابل لوري ځنډ نه وای په کې را وستی، داچې موږ د سولې په لور قدمونه اخلو د بندیانو خلاصون یې یوه لویه برخه ده چې هم اعتماد رامنځ ته کوي او هم د سولې لار لنډوي.

داخلي جهتونه دې د بین الافغاني خبرو په وړاندې پراته خنډونه بې له ځنډه لرې کړي، د لنډ مهاله ګټو د تقسیم پرځای دې د هېواد علیا مصالحو ته ترجیح ورکړي، تر څو افغانان په خپله د جګړې د داخلي موجودو او بالقوه عواملو د له منځه وړلو، هېواد ته د دائمي سولې د راګرځولو او د راتلونکي اسلامي نظام په اړه یوه ګډ تفاهم ته سره ورسیږي.

**د بهرنیو ځواکونو په اړه:**

دا یو ښه انکشاف دی چې د دوحې تړون د عملي کیدو په لاره کې امریکایانو او متحدینو یې له افغانستان څخه د خپلو عسکرو د بیرته ایستلو لړۍ پیل کړې.،




پنځه اډې یې تخلیه کړې او له لاسلیک کړې تړون سره سم به امریکایان او بهرني متحدین یې له افغانستان څخه خپل ټول نظامي ځواکونه او غیر دیپلوماتیک پرسونل وباسي.

اسلامي امارت له امریکا سره لاسلیک کړي تړون ته ژمنتیا لري، د امریکا د حکومت اړوند ملکي او پوځي ارګانونه او متحدین یې هم باید له اسلامي امارت سره کړي تړون ته په ژمنتیا سره، په ناموجهو ځرګندونو او تبلیغاتو د امریکا د دې اوږدې جګړې ختمولو په لاره کې موانع ایجاد نه کړي.

د امریکا متحده ایالات د تړون د تطبیق غوندې لویه او مهمه پروسه کې باید له ډیر جدیت، سرعت او تدبیر څخه کار واخلي، د تیرو نولسو کلونو څخه زده شوې تجربې باید مخې ته کیږدې، بیا خپل مسئولیت په ښه ډول ادا کړي، مثلا د توافقنامې خلاف د بندیانو د خلاصون لس ورځنۍ پروسه څلورو میاشتوته غزول، لا هم د تورو لستونو په خپل حال پاته کېدل، وخت په وخت ډروند، بمبارد، چاپې او توغندیز بریدونه کول او بیا په ناموجهو دلایلو توجیه کول د هیڅچا په ګټه نه دي او نه هم دا ډول حرکات نور د جنګ په ګټلو کي رول لري؛ بلکې برعکس ستونزې ځیږوي، په دې اړه هم باید امریکا او هم نوره نړیواله ټولنه جدي واوسي او نور مشکلاتوته د پای ټکی کیږدي.

لویه ستونزه داده چې د افغانستان په اقتصادي منابعو او ذخایرو او چوکیو د ټولنې له درد او غوښتنو ناخبره یوه داسې وړه ډله تحمیل شوې چې هغوی د افغانستان د علیا ګټو او ملي مصالحو په غم کې نه دي، د لنډمهاله ګټو او اقتدار په کشمکش مصروف دي، د هېواد اوږد مهاله کامیابي او ښیرازه اهمیت نه ورته لري، ملي او مهمې پروسې له څند او خند سره مخ کوي، لوړ مصالح په خطر کې اچوي، چې نړیواله ټولنه باید همدې ستونزې ته متوجه واوسي.

**د نړیوالو سره د اړیکو په اړه:**

په افغانستان کې سوله او امن راتلل د ګاونډیو او سیمیزو هیوادونو په شمول د ټولې نړۍ په ګټه ده.

اسلامي امارت د نړۍ له ټولو هېوادونو سره د ښه چلند پلوی دی، له اسلامي هېوادونو سره د ورورۍ په چوکاټ کې ژوند کول او یو له بل سره په همکاریو بناء اړیکې غواړي، له ګاونډیو هېوادونو سره د حسن همجوارۍ او د اعتماد وړ فضا رامنځته کولو باندې ټاکید کوي، د هیڅ هېواد په کورنیو چارو کې مداخله نه کوي او له نورو هېوادونو څخه هم غواړي چې زموږ په کورنیو چارو کې مداخله ونه لري، ځکه همدا ډول مثبت تعامل کولای شي هم موږ او هم نورو هېوادونو ته په امنیتي، اقتصادي او اجتماعي برخو کې ګټور ثابت شي.

**د بیا رغونې په اړه:**

له افغانستانه د بهرنیو ځواکونو له وتلو څخه وروسته اسلامي امارت غواړي چې د یوه سوچه اسلامي

نظام تر چتر لاندې د هېواد د بیا رغونې او پرمختګ لپاره جدي ګامونه واخیستل شي.

له بیت المال څخه سالمه او په پوره امانتدارۍ سره استفاده وشي، د ویجاړ وطن د بنسټونو د احیا لپاره ښه پلانونه وسنجول شي، د هېواد د علیا ګټو په نظر کې نیولو سره د نړیوالو اقتصادي پانګونو لپاره زمینه مساعده شي، ترڅو مو ویجاړ او جنګ ځپلی وطن د بیا رغونې او هر اړخیز پرمختګ په لور ګړندي ګامونه واخلي، اقتصاد مو په پښو ودرېږي، ښارونه او کلي مو آباد شي، هېوادوالوته مو کار پیدا شي، له فقر، تنګ لاسۍ، مسافرۍ او په نورو هېوادونو کې له کړاوګاللو څخه را وګرځول شي، داسلامي شرعي نظام تر سیوري لاندې روښانه، خوشحاله او بې احتیاجه ژوند ولري، له سعادت څخه برخمن او د سولې په فضا کې دآرام ساه واخلي.

**د تعلیم اوتربیې په اړه:**

تعلم او زده کړه د ژوند له مهمو اړتیاو څخه ده، نوی نسل او ځوان کهول باید د علم او پوهې په ګڼه ځانونه ښایسته کړي، د علم او پوهې حاصلولو ته متوجه شي او خپل قیمتي وخت ضائع نکړي.

د هېواد هرې برخې ته د تعلیمي بهیر رسول زموږ له مهمو هدفونو څخه دي، له همدې امله د اسلامي امارت مسؤلینو او ټولو مجاهدینو ته لارښونه شوې چې د ولس د بچیانو د تعلیم او تربیې په برخه کې ډېره توجه وکړي، د تعلیمي مراکزو، مدارسو او ښوونځیو د جوړولو په برخه کې زمینه مساعده کړي او پوره همکاري ورسره ولري.

**په مخالف صف کې د جنګیدونکو په اړه:**

په مقابل جانب کې جنګیدونکو افرادو او مخالفینو ته یوځل بیا پیغام ورکوو چې له جنګ او مخالفت څخه لاس واخلي، د اسلامي امارت د عفوې غیره یې په مخ کې خلاصه ده، موږ نه غواړو چې د دوی کورنۍ بې سرپرسته شي، کوښښ به مو دا وي چې دوی ته قناعت ورکړو، ترڅو له مجاهدینو سره یوځای او ژوند یې وژغورل شي، د همدې هدف لپاره موږ په خپلو تشکیلاتو کې د ارشاد او دعوت، جلب او جذب کمیسیون جوړ کړی دی.

**د لوائحو او اصولو د ښه تطبیق په اړه:**

د اسلامي امارت ټول مسئولین، مجاهدین او کارکونکي دې د خپل نظام د لا پیاوړتیا او قوت، اداري نظم او د صف د وحدت ټینګ ساتلو لپاره د اسلامي امارت د لوائحو، طرزالعملونو او په مختلفو ساحو کې د امارت د مقام د فرامینو او هدایاتو د عملي کولو په برخه کې خپله ډېره سعیه او کوښښ وکړي، ځکه په دې کار سره زموږ د هېوادوالو حقوق تأمین کیږي، امنیت ټینګیږي، د هیواد یو والی مضبوطیږي او ملي ګټې مو خوندي کیږي.

دا چې د لوی اختر دا مبارکې ورځې د خوښۍ او له اړو خلګو سره د همدردۍ ورځې دي باید شتمن او وس لرونکي هېواد وال له اړو، په تیره د هېواد له یتیمانو، کونډو او محتاجه کورنیو سره مرسته وکړي او د خپل توان په اندازه د هغوی لاسنیوی وکړي تر څو هغوی هم کم ترکمه د اختر په شپو ورځو کې له محتاجي او اړتیا څخه خلاص وي.

په اخیر کې یو ځل بیا ټولو ته د نېکمرغه لوی اختر مبارکي وایم، ټول طاعات اوعبادات مو قبول شه. والسلام

د اسلامي امارت زعیم امیرالمؤمنین

شیخ الحدیث مولوي هبة الله اخندزاده

۱۴۴۱/۱۲/۷هـ ق

/ ۱۳۹۹/۵/۷هـ ش ـ ۲۰۲۰/۷/۲۸م



عابد

# جنګي جرمونه جنايت که اتلولي ده ؟!

داسې ښکاري چې نيمه پېړۍ په دې خاوره ارام حرام دی اوله نيمې پېړۍ ناورينونو او ناکراريو وروسته ګوندې داخاوره دارام ساه واخلي . دثور د (۷مې) منحوسې کودتا پر ۴۲ کال ور ګډ يو اوله هغې ورځې ترننه مو پرخاوره کراري نه ده راغلې، اوس دامريکايانو له وتو سره که په بين الافغانی مذاکراتو کې دافغانانو ترمنځ پر يوه خبره يووالي ته رسيږو او له نورو خطرونوهم ډاډه کيږو، نو شايد چې ۸ کلونه نور هم واخلي چې په دې سره به زمونږ دغميزو نيمه پېړۍ پوره شي .

زمونږ د دې اوږدو غميزو کورني لاملونه به هم ډېر وي، خو پر کورنيو لاملونو سربېره يې بهرني دا ډېر مؤثر اوعمده بلل کېدای شي او تربل هر چا ړومبی دلته پخپله دبشر او انساني حقوقو نړيوالو مدافعينو له خپلو معيارونو پښې اړولې او ټول هغه څه يې دلته تر پښو لاندې کړي، چې نړۍ ته يې دانساني خواخوږۍ اوبشريت دحقوقو په نامه ور پېژندلي وو، همدا مو دغميزو دتسلسل دنه قطع کېدو سترلامل دی.که د دوی ګټې ورسره خوندي کيږي نو د هررنګه جنايتونو جاني به مبراء وي، خو که يوڅوک بيا دخپلو حقوقو لپاره غږ پورته کوي، نو هر ډول باطلې ټاپې پرې لګوي او د بشر دښمنان يې بولي .

کله د يوه شخص پرمذهبي کردار خبره دومره نړيواله کړي چې پرهيوادېي اقتصادي بنديزونو ته خبره ورسوي او کله بيا په رڼو سترګو ويني چې د رزګونو انسانانو قاتل وي، نه يواځې داچې پرهغه کوم نړيوال بنديز او دبشر ـ ضد کړنو دوسيه نه راپورته کوي، بلکې له ډېرو نړيوالو مراعتونو يې برخمن وي !!

نوره ټوله لرې موده به پرېږدو دغونې په ډول به دا ډېرون کړنه را واخلو، عبدالرشيد دوستم په افغانستان کې ښکاره او د ټولو افغانانو په حکم او رايه جنګي مجرم ، دسلګونو نه! بلکې د زرګونو افغانانو قاتل دی، پرون چې دلته يوه لاسپوڅي حکومت ديوه سياسي سازش اومجبوريت له مخې هغه ته دمارشالۍ رتبه ورکوله او په دې توګه يې د ده هرډول کړنې مجاز کړې؛ هيڅ يوه بشري نهاد غږ پورته نه کړ، په داسې حال کې چې له دوی سره يې هم د ډېرو سرغړونو دوسيې ثبت دي، هسې خو چې يوه وړه حقوقي مسله وي بې ځايه دومره وپړسول شي چې تر ورځو ورځو يې په رسنيوکې دبشر ـ دخواخوږو رسمي او غير رسمي ادارو له لوري تسلسل نه قطع کيږي، خو که يوڅوک بيا دانسانانو د نورو حقوقو تر څنګ دانسان ژوند اخلي په شکنجه او وحشت يې وژني، په وړاندې يې د دغو مؤسساتو له لوري ترهغو غبرګون نه ښودل کيږي ترڅو پکې بهرني او کورني مصلحتونه نه وي خوندي شوي .

که دافغانستان په اړه د دغو سازمانونو راپورونـه وڅېړل شي، نو وبه کتل شي چې تر ډېره دانسانانو په مرگ او وژنو نه، بلکې له دې په راښـکته درجـه کـې بـه پـه نـورو موضـوعاتو راڅرخیږي، او سره له دې چې پـه دې هیـواد کـې تـر بـل هـر انساني حق دانسان دژوند حق ډېـر پـه خطـر کـې وي، او هـره ورځ په درځنو انسـانان پـه بېلابېلـو لارو وژل کیـږي، چې ډېره برخه یې په بمباریو او عملیاتو وي، خو که وکتـل شي په دې اړه به دوی څومره غږ پورتـه کـړی وي ؟ شـاید د نـورو مسئلو په پرتله کم وي او که وي هم انصاف بـه پکـې نـه وي مراعت شوی .

دستم ته دمارشالۍ د رتبې له ورکولوسره ډېـر امیـد کېـده چې که سیمه اییز بشري سازمانونه غږ نه پورته کوي، نو شـاید چې (I C C) نړیواله محکمه خو به خپل مسؤلیت ترسره کړي اوله اوږدې مودې د ده جنگي جرمونو ته په کتـو سره بـه اواز اوچت کړي چې له بده مرغه په خپل دغه مزبون سکوت سره هغوی هم د ده دغه جرمونه مجاز کـړل، نـو ځکـه وایـو چـې زمونږ دغمیزو ترکورنیو لاملونو بهرني دا ډېر عمده دي .

پرهیواد دننه هم په دې اړه ډېـر څـه شـته، خـو کـه هـر څومره په دې او ورته نورو کورنیـو بـدبختیو وغږیـږو سریـې بېرته هماغو بهرنیانو ته ورځي چې دعوه یې په ټوله نـړۍ کـې دانساني حقوقو دفاع ده، خـو پـه افغانسـتان کـې بیـا پرډېرځـه سترگې پټوي، سره له دې چې تر بل هر وخـت یـې دلتـه خبره ډېره حاکمه ده او په افغانستان کې دحکومت پرنـوم اداره کـه څـه هـم دوی تـه اوس پېغـور گرځېـدلې، خـو د دوی د هڅـو ارمغان ده .

نو که جنگي جرمونه په نوره دنیا کې جنایت وي اوجاني یې باید محکوم وي، خو دلتـه جنایـت نـه! بلکـې اتلـولۍ ده او ترسره کوونکی یې دمارشالۍ مستحق دی !!؟

# دملابرادراخند پاسپورت !!




**دا وګورئ طالب مشر ملا برادر اخوند صاحب ته افغاني پاسپورټ د قطر تر دفتر رسول شوی آن هیڅ د تګ زحمت هم ندی کړی په سلامي یې ورته سپارلی.**

**موږ پخوا ویلي وو چې ددې خاورې رښتیني مالکین په غرونو او زندانونو کې د سپینو او تورو پګړیو والا دي، د ازادۍ د مبارزینو پر ضد افواهات ،جعلکاري او تبلیغات د بشر د تاریخ یو بدرنګ تسلسل دی چې هیڅکله پرې نتیجه نده مرتب شوې.**

**غربي ګوډاګیانو به ددې ولس د نبض د تشخیص په دائره کې د پاکستان ضد کاذبې ژبې چلولې او د هېواد ارزښتونو ته تر هر چا مقدم او ژمن طالب به یې پرې متهم کړ او خپلې جاسوسې او معاملګرې څهرې به یې د تقدس تر حده ورسولې دا هر څه او ددوی شل کلنې کاذبې ادعاوې له دې تصویره قیاس کړئ.**



# له بين الافغاني مذاکراتو دتېښتې پلمې به کابل اداري ته څه ګته ورسوي؟

حسن مومند

دقطر په پلازمېنې دوحې کې داسلامي امارت او امریکا تر منځ درامنځته شوي تاریخي تړون د۱۳۵ ورځو ړومبی پړاو پوره شو.

پدې موده کې له ۴ زرو زیات مجاهدین له زندانونو آزاد شول اوهم رسماً امریکا اعلان وکړ چې ۵ اډې یې خالي کړي اوخپل ټول فوځیان یې تړې ویستلي دي.

کله چې امریکایانو دا اډې جوړولې او ورته راتلل دا تصور به یې هم نه کاوه چې بیابه ګینې دوئ دا اډې خالي کړي ؛ دنړی زیاتره عامو مسلمانانوهم له افغانستان نه ددوئ وتل او ددوئ زندانونو ته په وړل شویو مجاهدینو کې دکوم یو بېرته خپل کورته راتلل ډېره ګرانه خبره ګڼله خو دافغانانو دسترو قربانیو په برکت او په سیاسي ډګر کې داسلامي امارت دباتدبیره مشرانو دهلو ځلو، معقول دریځ اوپر ځای پرېکړوپه نتیجه کې اوس دادی هم له هېواده اشغالګروځي ؛ اشغال پای ته رسېږي او هم مویو ، دوه ، لس یا سل نه بلکې په زرونو مجاهدین په ابرومندانه ډول له زندانونو آزادېږي.

یقینا دا ډېر زیات دخوښی ځای دی اودځینوهغواسلام دښمنو پرمخ ډېره درنده څپېړه ده چې داشغال دپیل په ورځوکې به یې ویل :طالبان لیوني دي چې دامریکا په مقابل کې دجنګ ډګر ته راوتي دي اوتمه لري چې دامریکا مقابله به وکړای شي او په جنګ به یې له هېواده وباسي.

داهغو خلکو ته هم ښه غاښ ماتونکی جواب دی چې ددوحې دتړون په هکله به یې ویل:طالبان وغولېدل ؛له دې تړون به دوئ څه تر لاسه نکړي.

اوس دې دوئ راشي ودې وایې چې اسلامي امارت څه ترلاسه کړل که نه ؟

ثوک چې له اسلامي لاربښوونو خبر وي هغه پدې پوهېږي چې دکفارو له قبضې نه یوه لوېشت ځمکه راویستل او له قیده یې یو اسیر آزادول هم ډېره لویه خبره ده.

دتړون د۱۳۵ ورځو ړومبی پړاو دپوره کېدو په اړه دامریکا ځانګړي استازي زلمي خلیلزاد ویلي دي چې دهوکړې د لاسلیک د۱۳۵ ورځو تېرېدل د امریکا اوطالبانولپاره دپام وړ موضوع ده؛ امریکا ټوله هڅه وکړه چې په دغه وخت کې خپلې ژمنې عملي کړي دسرتېرو کمول او له ۵ اډو نه دسرتېرو ویستل یې مهمې برخې وې ؛ناټو هم په همدغه تناسب خپل سرتېري کم کړیدي ؛هغه ویلي دي دزندانیانو په خوشې کولو کې هم دپام وړ پرمختګ شوی.

خلیلزاد د سمنګانو ولایت د استخباراتو په مرکز داسلامي امارت د مجاهدینو برید وغندلو او ویې ویل چې

د ولایت پـه مرکـز کـې داسـې چـاودنې دمنلو وړ ندي؛ دا هغو ډلو ته فرصت پـه لاس ورکوي چـې دسـولې سره مخالفـت کوي؛  له دې وروسته بـه زمـوږ دسـولې دهوکړې راتلونکي مراحل دشرایطـو پـه اسـاس عمـلي کېـږي؛ دتـاوتریخوالې دکموالي، دبندیانو ازادۍ او د بین الافغاني خبرو دڅړ پیل لپاره بـه فشـارونه زیـات کړي ؛ زلمی خلیلـزاد همـدا راز دبنـدیانو دخوشـې کېـدو پـه برخـه کـې پـه ورو پرمختګ اندېښنه ښکاره کړه او ددغـه بهیر دګړندیتوب غوښتنه یې وکړه.

داچې دسرتېرو کمول او د ۵ اډو نه یـې ویسـتل دتوافقنـامې حکـم دی او امریکا ورته خپلـه ژمنتیـا ښـکاره کـوي ټول افغان مسلمان ملـت  ورتـه دیـو ښـه اومثبـت ګـام پـه نظـر ګـوري ؛همـدا دامریکـا سره ښـایې خـو امریکـا چـې یواځې همدا یو کار دسولې ټول تړون ته ژمنتیا بولي داسمه خبره نده.

په غیر جنګي سیمو نه بمبار دتعهـد مهمه برخه وه خو پـه تېـرو ۱۳۵ ورځـو کې امریکـا پـه خپلـې کـړې ژمنـې نـده ودرېـدلې ؛ پخپلـه امریکـا هـم پـه غیـر جنګي سیمو بمبارونه کړیـدي او د ولـس پر ضد کابل اداري دروان وحشت نه یـې هـم حمایـت کـړی ؛ دهمـدې ړومبـۍ مرحلـې پـه وروسـتیو لسوورځوکې پـه لوګر،بادغیس ، میدان وردګـو ، غـزني ، ارزګـان ، زابـل ، هلمنـد اوکنـدهار کـې امریکـا ډرون بریدونـه او بمبارونـه کړیـدي چـې دا دتوافقنـامې نـه ښـکاره مخالفت دی.

سره لـه دې چـې پـه سـمنګانو اود هېواد پـه نـورو برخـو کـې دمجاهـدینو بریدونه دسنګین دېښنې په څېـر دکابـل اداري د وحشـت نـه ډکـو حملـو او دامریکایې ځواکونو دبمبار عکس العمل دی خوبیا یـې هـم زلمـی خلیلـزاد غنـدي اودسولې مخـالفینو تـه پـه لاس فرصـت ورکول یې بولي ؛ خلیلزاد په سنګین کـې دکابل اداري په لاس رامنځته شـوی لـوی وحشت ولې نه غندي او ولې یې دسـولې دپروسې دسبوتاژ کولو هڅه نه بولي ؟

دهېـواد د مختلفـو برخـو پـه غیـر جنګي سیمو کې خپـل هـوایي بریدونـه ولې له پامه غورځوي او دتوافقنـامې نـه یې مخالفت نه ګڼي؟

په لسـو ورځـو کـې د۵زره طالـب بنـدیانو ازادول او ورپسـې سمدسـتي وروسـته د بـین الافغـاني مـذاکراتو پیـل کېـدل د توافقنـامې ړومبـۍ شرط و؛ توافقنامې ته دپوره  ژمنتیا دعوی به هغـه وخت صحیح وای چـې اوس د۵ زرو نـه علاوه نـور بنـدیان هـم ازاد شـوي ، بین الافغاني مذاکرات پیل او ډېر پړاونـه یـې وهلي  وای، خو ټولـه نـړۍ وینـي چـې د دوحـې تـړون د غوښـتنې خـلاف دکابـل اداري له لوري دا پروسـه پـه بـې بنسـته پلمـو اوبهانوځنـډیږي خـو امریکـا یـې مخه نه نیسي چـې دا دامریکایـانو پربـد نیتۍ دلالت کوي  کنه نو څنګـه کېـدای شي چې د دوئ په لاس رامنځتـه ، د دوئ پـه پیسـو چلېـدونکې اوددوئ ګـوډاګۍ اداره دې د دوئ د ارادو پـــه وړانــــدې ودرېږي او د ورسپارل شوي کار په عملي کولو کې دې پلمې ولټوي؟!

له هیڅا داخبره پټه نده چې دکابـل اداره، په هېواد کې د اشغال شـتون کـې خپله بقا ویني نوځکه له پیلـه تـر ننـه د دې مهـم تـاریخي تـړون مخالفـه ده او د هـوکړې د عمـلي کېـدو پـه مـخ کـې د خنـډونو ایجـادولو هڅـې کـوي چـې د بندیانو په خلاصون کې بهانې یې ښکاره دلیل دی .

د کابـل رژیـم کلـه ځـان د توافـق لوری نـه بـولي، کلـه د توافـق پـرخلاف اوږده وختونـه غـواړي او اوس یـې لا دباندنیو چارو وزیر اول داوویل چې پـه لسـت کـې شـامل ۶ سـوه طالـب بنـدیان دجنایي اوحقـوقي جرمونـو لـه املـه نـه خوشي کـوي پـه سبا یـې پـه ډېـرې بـې شرمۍ دا خبره بدله کړه او ویې ویل چې هغه ۶ سوه کسـان چـې یـې نـه پرېـږدو نړیوال راته وایي چـې مـه یـې پرېـږدۍ ځکه چې زموږ عسکر یې وژلي دي.

داڅومره لوی دروغ دي؟! اسـلامي امـارت چـې دوئ ټـول دخپـل صـف مجاهدین بولي نو دامني چې زموږ دملت دبچیـانو دقـاتلینو اشـغالګرو سره یـې

مخامخ جنګونه کړيدي او په جنګ کې طبعاً مري کېږي

دبهرني اتحاد مشري خو امريکا کوي چې امريکا دتړون له مخې ددې مجاهدينو آزادۍ ته غاړه ګدي نو بل څوک دي چې دکابل اداري نه يې ددوئ دنه خوشې کېدو غوښتنه کړيده؟ دا بهرنيان څوک دي حنيف اتمر يې نوم ولې نه شي اخستی ؟

اومهمه دا چې دا بهرنيان هغه آزاد شوي له ۴ زرو زيات مجاهدين ولې دخپلو فوځيانو قاتلين نه بولي؟ څنګه دوئ پوهېږي چې هغوئ قاتلين ندي او دا پاتې قاتلين دي؟

اشرف غني او دحنيف اتمر په څېر دده دفکر ملګري دې پدې پوه شي چې نور په بربنډو دروغو ولس نه شي غولولی اودغه حربه به ورته کومه ګټه ونه رسوي ، نه به پدې چال د ډېرې مودې لپاره په قدرت کې پاتې شي او نه به بهرنۍ نړۍ ورته کوم ارزښت ورکړي؛

په هېواد کې سوله او امن راتلل حتمي دي، سوله شايد وځنډېږي خوځو پردي پالي يې دخپل قدرت دبقا لپاره مخه نه شي نيولای.

دوئ چې ملت ته يې په شلو کلونو کې د مليادونو ډالرو له راتلو سره سره يوه اقتصادي زېربنا جوړه نه کړه او نه يې دنورو له احتياج نه خلاص کړل بلکې دخپلو مادي ګټو لپاره ولس ته داشغال بقا او ورسره تړلې ټولې بدبختئ غواړي چې له امله يې د دوئ په وړاندې اوس ولسي_ کرکه اوج ته رسېدلې او په ولس کې داسلامی امارت محبوبيت ډېر زيات شوی.

په ولس کې داسلامي امارت همدا محبوبيت اودنظامي قوت پراختيا يې پرکابل اداري ورځ تربلې حلقه راتنګوي ؛ دکابل اداري حالت ورځ تربلې بدتربږي .

امريکا اومتحدين يې چې په خپل ټول قوت خپلو استعماري اهدافو ته ونه رسېدل او ددوحې تړون لاسليک ته اړ شول ؛ دهغوئ دنه شتون په صورت کې به يې دلته لاسپوڅې اداره څرنګه دولس له ارادې خلاف په خپل نامشروع قدرت کې پاتې شي اوپه هېواد کې به دسولې اواسلامي نظام دراتلو مخه ونيسي؟!

ددوحې توافقنامې ټولو برخو ته ژمنتيا او عملي کول يې دافغانستان او امريکا دواړو په ګټه ده ؛اسلامي امارت چې پخپله د توافقنامې ټولو برخوته ژمن دی او تر اوسه يې په يوبهرني عسکر هم ډز ندی کړی له امريکا هم همداسې عملي ژمنتيا غواړي او ترې هيله لري چې تر خپل لاس لاندې دکابل رژيم به هم، د دې تاريخي تړون د بريا لپاره ژمنتياته اړ کړي ترڅو ژر بين الافغاني مذاکراتو ته لار برابره او دتل لپاره دا ستره ستونزه حل شي.



## نړيوال مفسدين او غله وپيژنئ !!

د کابل اداري مفسدو چارواکو بنديانو ته د کراېي په نوم جعلي افغانۍ ورکړيدي او اصلي يې د خپلې فحاشۍ لپاره ذخيره کړلې.

بې سرنوشته عسکرو تنخواوې يې غلا کړلې، صابون غله، وچې ډوډۍ غله ،غنمو او په ګُل کې د نړيوالو مرستو غلاوې ددوی د کړنو عمده لاسته راوړنې دي.

لنډه دا چې دې مفسدينو داسې څه پرېنښودل چې خپلو شرابو او فحاشۍ لپاره يې ترې برخه نه وي بيله کړې.



# د کابل ادارې د ښځو له ګومارنو موخې څه دي

لیکوال: احمد عزام

په هېواد کې د لاسپوڅو ادارو په سر شمېرنه کې به اوسنۍ واحده اداره وي چې له نورو زیات د خپل بادار تم کولو ته لیواله ده همدا ډول پردۍ کلتور او رواجو پلي کولو هڅې یې د یاد ولو دي همدا ډول د غرب تهول فرهنګ غواړي را کاپي کړي سینماګانې ، ډانس کلپونه جوړول یې له سترو اهدافو څخه دي ښځو ته د اسلامي دین او افغاني کلتور بر خلاف آزادي ورکول ښځې ته دا حق ورکول تر څو هر وخت وغواړي خاوند ته طلاق ورکړي همدا ډول حکومتي دندې ورکول او په هغو غټو دندو یې ګومارل چې اهل یې نه دي نه اسلامي دین له مخې جواز لري نه افغاني کلتور سره اړخ لګوي او نه افغانان دا ډول آزادي خپلو ښځو، خویندو او لورګانو ته غواړي

د اسلام ستر پیغبر حضرت محمد(صلی الله علیه وسلم) مسلمانان منعه کړي او هغه قوم یې ګمرا بللی چې ښځو ته مشري ورکوي .

نبي علیه السلام ته چا خبر ورکړو چې د فاریس خلکو خپله مشره ښځه مقرره کړې ده.

رسول الله صلي الله علیه وسلم ورته وفرمایل: لَنْ يُفْلَحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمْ امْرَأَةً.

ژباړه: هېڅکله به بریالی نشي هغه قوم چې ښځو ته یې خپل کارونه سپارلي وي. (رواه البخاري)

ډېر خلک به دا اعتراض کوي چې ښځه خو د ټولنې نیمه حصه تشکیلوي بیا ولې د دندو ورکولو مخالف یاست؟ دغه وګړي دې بیا اسلام مطالعه کړي وبه پوهیږي چې اسلام ښځې ته دومره حقوق ورکړي چې بل دین نه دي ورکړي اسلام ښځې ته د تجارت ، زده کړې حق ورکړی خو دا هغه مهال چې د دې عزت محفوظ وي خوکه د عزت خطره یې وه چې انساني لېوان به یې وداړي نو بیا له تجارت او زده کړو کولو یې په کور ناستی ښه ده

راځی وپوهیږو چې اسلام ولې خاوند ته دا حق ورکړی چې ښځې ته طلاق ورکوی شي خو ښځې ته یې دا حق نه ده ورکړی چې خاوند ته طلاق ورکړي په همدې اړه علماء داسې فرمایې : چې ښځه زر خفه کیږي او زر غوصه کیږي که اسلام ښځې ته د طلاق حق ورکړی وی نو ښځه به له دې خپلو دوه کمزوریانو له امله خپل د ژوند داسې ملګری له لاسه ورکړی وی چې شاید بیا یې هغه ډول بل نه وی پیدا کړی

دا چې نکاح او بیا د طلاق په باب کې دومره حق نه ده ورکړل شوی نو په یو قوم او هېواد یې ګومارل له شک پرته چې ستره بې عقلي ګمراهي ده .

په دې نېږدې ورځو کې د کابل ادارې مشر د هر ولایت د والیانو ته یې یوه یوه مرستیاله منظوره کړې چې څه ولایاتو ته یې ګومارلي او دغه پروسه لا په درز کې

روانه ده د دې شل کالو په موده کې امریکا او د کرزي او غني ادارو د ښځو آزادۍ له کورو څخه د را ویستو مختلف وزارتونه ، ټولنې او رسنۍ جوړې کړې

دا چې د کابل اداري له روستیو ګومارنو یې موخې او اهدف څه دي؟ په راتلونکو کرښو کې به يې ولولی

۱- کابل اداره غواړي نړیوالو خصوصا امریکا ته وښایې چې تر اندازې زیات د ښځو آزاۍ ته مونږ ژمن یو

۲- غواړي چې په دې طریقه هغه افغانې مېرمنې له کوره را وباسي چې لا تر اوسه یې چا د لوپټې څنډه هم نه ده لیدلې

۳ - د ښځو را پارول او هغوي ته داسې ور ښودل چې ستاسو حقوق پایمال شوي او باید چې د خپلو حقوقو غوښتنه وکړی.

۴ - دوه سري اداره په دې پوه شوې چې نور یې د زوال وخت رانېژدې شوی دا چې راتلونکي اسلامي حکومت به ښځو ته هغه حقوق ورکړي کوم چې اسلامي دین ورکړي خو دا ډول لوړې دندې ورکول به زما په آند ور نه کړي ځکه چې اهل یې نه دي خو د کابل اداره غواړي چې ښځینه طبقې ته راتلونکی اسلامي حکومت د یو بلا په شکل ور معرفي کړي او دا ور وانګیري چې راتلونکي حکومت کې به ستاسو حقوق پایمال وي .

۵- ستر هدف یې غربي آزادي د ښځو دلته مروجول دي .

دا ډول اعمال تر سره کول نه افغانانو ته د منلو دي بلکې د سولې مخ ته د خنډو ایجادولو په طالبانو د یو ډول فشارو واردولو لپاره انجامیږي کابل اداره دې په دې وپوهیږي چې دا افغانستان ده د دې ځاي وګړي عزتمند خلک دي دلته د غرب په څېر ښځو ته آزادي ورکول خیال ده ځکه دا اولس لوړه تنده برداشت کوی شي خو دا ورته هیڅ کله ورته دې منلو نه ده چې د دوي خویندې او لورګانې دې له نامحرمو سره په یو دفتر کې ناستې وي البته مسلمانان دي د ښځو هغو حقوقو ته ژمن دي چې اسلام ورکړي دلته نه د غرب او نه د شرق آزادي غواړي.

## زه مُلا یم ماته یې ارزانه کړه!!

**ابراهیم بن ادهم رحمه الله لوی ولي الله ؤ ، په لاره روان ؤ چي یوه سړي منې ( سېبان ) په ریړۍ کې خرڅول ، ابراهیم بن ادهم رحمه الله ترې وپښتل په څو دي؟ هغه وویل: په ۸۰ روپۍ کیلو ده ، ابراهیم بن ادهم رحمه الله ورته وویل: په ۶۰ یې راته ولګوه. هغه وویل: نه په دومره نه کیږي.**

**ابراهیم بن ادهم ترې روان سو، دغه دکاندار سره بل سړی ولاړ ؤ نو دکاندار ته یې وویل دا سړی دې وپیژانده، دکاندار ورته وویل: نه**

**وایې دا خو هغه لوی بزرګ دی ابراهیم بن ادهم رحمه الله! ، نو له دې سره دکاندار پسې منډې کړې او هغه یې بیرته راووست او ورته وویل چې راشه منې یوسه، ابراهیم بن ادهم پوښتنه ترې وکړه وایې مخکې د ولې نه راکولې؟**

**دکاندار ورته وویل چې ما نه پیژندې اوس دغه سړي راته وویل چي دا خو ابراهیم بن ادهم هغه لوی بزرګ دی نو ځکه .... ابراهیم بن ادهم ورته وویل چې اوس یې په شل روپۍ هم نه غواړم ځکه ما دا طاعات عبادات د الله لپاره کړي نه دې دنیا دګټو لپاره . نن سبا هم علماء طبقې ته او خصوصا د جوماتو امامانو ته دا پکار دی چې له دکانداره په په دې نظر شی وانخستل سي چې زه امام یم نو ماته یې ارزانه کړه .**

**دې سره یې حیثیت لوړیږی قدر یې زیاتیږي!**

ابوظهیر

# هو! دخالص بابا رحمه الله یاد پرلمانځلو ارزي!

رښتیا هم خالص بابا یواځي دګفتارغازي نه!
دګفتار غازي هم و!کوم څه به یې په خوله ویل هغه به یې عمل کې هم ښودل،قراره له اوریدوچې دشوروي سرولښکرو پخلاف دجهاد په دوران کې به نورو جهادي مشرانو دپیښور خوندونه اخیستل اوخالص بابا به په سپینه ږیره دتوري بوړې په سختوسنګرونوکې له مجاهدینوسره یوځای په میاشتو،میاشتو پروت و او پیښورته به نه ته

اوریدلي موهم دي اولوستلي موهم، چې خالص بابا د جهادي رهبرانو له منځه په دې سربیره چې یومعتبر، ثقه اوجید دیني عالم و،پیاوړی لیکوال، ادیب، شاعر اونقاد هم و، هغه که یولورته دشوروي سره ښکېلاک پرضد توپک په اوږه کړی و او سنګرېي نیولی وبل پلوته دسترخوشال پشان دقلمي مورچل نومیالی مجاهد اومبارز هم و،هغه مهال چې افغانستان کې دکمونزم الحادي ایډیا ریښو غځوني کولې اودهیواد دباسواده قشریوه لویه برخه ځوانان یې په مختلفولالچونو اوهوسونوسره پخپلو لوموکې ښکېلول دهیواد په سطحه څو په شمارقلموال مبارزین اومجاهدین وو چې هغوی په رسنیوکې داسلامي ارزښتونونه په دفاع او دکمونستي افکاروپخلاف لیکنې او مضامین لیکل چې یو مخکښ اودځواکمن علمي استعدادنه برخمن لیکوال مولوي محمدیونس خالص رحمه الله و چې دکمونستانوله پټو اوښکاره سازشونوڅخه یې افغانان خبرول اوهم به یې په اشتراکي اندونو باندې په ډیرجرئت سره عالمانه اوفاضلانه نیوکې کولې اوپه قوي استدلال سره یې دهغوی الحادي انګېرنې ردولې.

له شک پرته هغه مهال دا یوترټولومؤثر جهاد اویوه ننګونکې درنده مبارزه وه،چې په محدود شمیر قلموالو پرمخ وړله اوپکې دخالص بابا کردار ترنورو ډېر روڼ، بارز او مؤثرو .

کله چې په ۱۳۵۷ ل کې دکمونزم پلویانو له خپل اثرورسوخ نه په ګټه دثوربدمرغه کودتاه رامنځته کړه،اودخپلې ایډیا سره سم یې داسلامي ارزښتونو او دیني شعایرودلمنځه وړلو لپاره ګامونه پورته کړل،مقابل کې یې دهیوادو دجیدوعلماووپه فتوا عملاً جهادپیل شو، مولوي محمدیونس خالص هم دجهاد فتوا ورکوونکوعلماووله مخکښانوڅخه و،چې د خپلې قلمي مبارزې اودعوتي جهاد ترڅنګ یې وسلوال جهادته هم ملا وتړله اوپه سپینه ږیره یې دتورې بوړې په غرونو کې دجهاد لپاره سنګر تاسیس کړاوهم هلته دنورومجاهدینو سره یوځای دېره شو، هرډول تودې وسړې په لوړهمت وزغملې غرض داچې اروانښاد مولوي صیب خالص یواځې «قوال مجاهد» نه وبلکې« فعال مجاهد» دمعرکو اوسنګرونو مجاهد هم و.

ترکومه چې موږ لوستي اویاخبریو مولوي صیب خالص یوساده اودنرم ظریفانه طبعیت خاوند و، له غرور

او تفاخرځخه یې نفرت کاوه، اوپخپل ملاتوب یې فخرکاوه،همیشه یې دنوروزهبرانوپه مخکې تورته،تور اوسپین ته سپین ویل او دحق په معامله کې یې دهیڅ ملامت کونکي دملامتیا یا خفګان پروا نه کوله.

مجاهدین چې کله کابل ته ننوتل،اودهغه وروسته هلته دحزب وجمعیت ترمنځ داقتدارپه سرجنګونه شروع شول،هزارګان اوسیاف هم د یوبل سره اړم شول،په ولایتونوکې ورته جنګونه اوپاټکسالاري رامنځته شوه، درهبرانوله منځه یواځې دیني عالمان وو لکه مولوي صیب خالص،مولوي محمدنبي اومولوي جلال الدین حقاني چې هغوی ځانونه له خپلمنځي جنګونو لري وساتل او دخپلمنځي جګړو عاملین یې وغندل،خپل ملګري او مجاهدین تري لري وساتل او قطعاً یې دخوکۍ پخاطر دحزب وجمعیت پشان مسلمان وژنه او افغان وژنه حلاله ونه ګڼله، بلکې ببانګ دهن یې ورته حرام وویل،یقیناً ددې یادو اکابروعلماوودافراست اوهوښیارې ددرناوي وړده اونن یې په برکت دهرعالم اوهرطالب شمله له دې پلوه هسکه ده چې علماوو ځانونه دکورنیو جنګونو څخه لري وساتل، اوپه جرئت سره ویلی شي چې د هیواد ورانولو «په جګړه کې دیني علماء شریک نه وو» چاچې دهیواد ورانولوجګړه رهبري کوله «هغوی له آراه ددیني مدرسوفاضلان اوعالمان نه ول» خلک او تاریخ دواړه «هغوی پیژني او ورته معلوم دي» کنه دا نه چې علماوو سره نظامي ځواک اودجنګیدوقوت نه و، یواځې په ټول هیوادکې دمولوي جلال الدین حقاني رحمه الله پشان ځواکمن او مجهزقومندان نه و،خوهغه ترپایه ددې پر ځای چې خپله کابل ته ننوځي ویل یې: کابل دي دکابل ولایت اړوندجهادي قومندانان اداره کړي،هیڅوک دي ورته دننوتلو کوښښ نکوي، خومسعود په پټه دکمونستانو سره معامله وکړه اوهم دهغوی په مټ کابل ته ننوت او دهیواد ورانولو جګړې یونه پای لرونکی تهداب یې کیښود، لیکن علماوو داکار ونکړ هغوی هرڅه وزغمل خو پخپلمنځي جنګونوکې یې دمسلمانانوپه وینو لاسونه سره نکړل.

کله چې دشروفساد اوملوک الطوایفۍ په خلاف له کندهارڅخه دامیر المؤمنین ملامحمد مجاهد رحمه الله په مشرۍ دعلماوو په فتوا ددیني مدرسوطالبانوپاڅون وکړ اوپه لنډوخت کې یې دکابل پورې ولایتونه هغوی ونیول مولوي صیب خالص له لږ ځنډ وروسته دهغوی ملاتړ وکړ او هم یې مولوي جلال الدین حقاني ته مشوره ورکړه چې طالبانوسره ملګرتیا وکړه،هغه وچې حقاني صیب مرحوم په بشپړه توګه دطالبانو داسلامي تحریک څخه ملاتړوکړاود ډیرتواده هرکلي په بدرګه یې هغوی ته ترخپل نفوذ لاندې ولایتونو واک وسپاره

کله چې دطالبانو داسلامي تحریک لخوا دهیواد ختیځ ولایتونه ونیول شول، مولوي صیب خالص هم دطالبانو بشپړ ملاتړ وکړ او ورسره یې همکارۍ وکړې ،دکابل له فتح وروسته دافغانستان اسلامي امارت په رامنځته کیدو مولوي صیب خالص اوملګرو یې ترې ننګه اوملاتړ وکړ،دغه زمانه کې دنړۍ مغرضو هیوادونو ډیر کوښښونه وکړل چې دطالبانو په وړاندې مخالفتونوته هوا ورکړي اوورته ستونزې اومشکلات پیداکړي،ممکن په مولوي صیب خالص او دهغه په ملګروبه یې هم کوښښونه کړي وي،ډیرشنه باغونه به یې ورته ښودلي وي، لیکن خالص بابا ترپایه ونه ښویېده اوپخپل عزم او دریځ باندې ولاړ پاته شو کله چې دیوولسم ستمبر پیښې په پلمه امریکا په افغانستان دیرغل تابیا ونیوه، تردې چې دمولوي صیب خالص ډیرنیږدې ملګري او قومندانان هم دشنو ډالرولپاره له هغه نه جلاشول، لیکن مولوي صیب خالص بیا هم خپل مسیرته تغیر ورنکړ او هرډول لالچونه او مادیات یې په لغته ووهل د امریکادتیري په وړاندې یې داسلامي امارت بیرغ لاندې دجهاد کولو قوي هوډ څرګند

کړ،داچې له نیکه مرغه مولوي صیب خالص دعلمي او فکري پلوه دجومات اومدرسې سړی و، ټول عمریې پر ځان کوم بل رنګ ونه خېراوه اودامریکایانو دیرغل په وړاندې د مجرمانه مصلحت په پلمه له جهاده ستون نشو اوپه نره دصلیبي یرغل په وړاندې دجهاد بیرغ پورته کړی و .

که څه هم دغه مهال نوموړی دخپل عمر په یوه داسې مرحله یاحالت کې و، چې دناګارصیب په قول: پرولاړه دلمانځه کولواوپه ژبه دعظیم الشان قرآن دروان تلاوت ارمانجن و، بیا یې هم دامریکایانو دتیرې په وړاندې ناسته یاخاموشي دمصلحت په فتوا روا ونه ګڼله اوخپلوټولوپیروانواوملګروته یې دجهاد په لارکې دخروج اوپاڅون حکم وکړ

رښتیا! چې په دې عزم او جرئت یې دسلفو صالحینو یاد او دامت اولوالعزم ایمه وو تاریخ ژوندی کړ،دکفرپه وړاندې یې تسلیمې او سرټیټې ونه منله، او نه یوائې په دې سره یې ځان د اخروي مسؤلیتونوڅخه



خلاص کړبلکې دافغانانو او نړۍ په تاریخ کې یې دعلماوو او طالبانو دعزت اووقار شمله هم هسکه کړه،دجومات اومدرسې توغ یې هم پورته وساته،تکلیفونه او زحمتونه یې وزغمل خودعلماوواو دیني قشرله تاریخ سره یې جفا ونکړه،بلکې هغه یې نورهم ځلاندکړ،کنه نن به دعلماوو، طالبانو، مدرسو او جوماتونو حاسدینوته دخولوچول کولو موقع وه چې ووایي: علماووهم دامریکا په وړاندې سرونه ټیټ کړل او ترې وډارشول !نن الحمد الله موږ په جرئت سره وایو چې د عالم رهبر او دغیرعالم رهبر! ترمنځ توپیردادی چې عالم رهبر څنګه پرون دشوروي پخلاف جهادفرض ګڼه او ورته یې ملا تړلې وه نن هغسې دامریکایي یرغل په خلاف یې هم دجهادبیرغ پورته نیولی اوورسره په مقابله بوخت دی او هر چې غیرعلماء رهبران ول هغوی پرون دشوروي خلاف دامریکاپه غوښتنه جهادکاوه خو نن چې کله دامریکا په وړاندې دجهاد نوبت راغلی ټول دامریکاپه پلوی لاړدي اوپه افغان ولس دامریکا بري ته منتظردي، نن چې امریکادخپل یرغل تراخه وخکل اوبیرته دوتلو په حال کې ده دا دهمدې ملنګ ملا اوفقیرطالب دقربانۍ او کردار مرهون منت ده چې مات نشو او له خپل مسیره په شانشو .

مختصر دا چې له مبالغې پرته خالص بابا یوله هغو سرلارو علماوو څخه وچې موږته یې له ځان وروسته ښه سرلوړی او دننګ اوقربانیو څخه ډک تاریخ په میراث پرې ایښی، موږ یې باید منت باراووسواو روح ته یې له خلوص نه ډکې پیروزینې اودعاګانې ولیږو اوپه لیکنواونشراتوکې یې ژوند اوتاریخ ژوندی وساتو په همدې هیله

# آیا صوفیا پر جومات بدلیدل،

## د کفارو غندنه او د مسلمانانو چو پتیا!

لیکنه: همایون عیسی خېل

آیا صوفیا جومات په نړۍ کې یواځینی هغه مسجد دی چې، مخې ته یې بیت المقدس (د مسلمانانو لومړنۍ قبله) او بیت الله شریف (اوسنۍ قبله) راځي!

د جغرافیې نقشې په اساس د دغه تاریخي جومات قبلې لور ته لومړی بیت المقدس موقعیت لري، ورپسې بیت الله شریف راځي. چې په یوه وخت کې د دغه جومات لمونځ کونکي دواړو قبلو لور ته مخ کوي.

د نړۍ دغه کلتوري میراث، په شپږمه پېړۍ کې د Byzantine یا ختیځ روم امپراطورۍ یوې کلیسا په ډول جوړ شوی وو، په ۱۵ مه پېړۍ (۱۴۵۳) کې د عثماني خلافت په دوره کې په جومات بدل شو، بیا د شلمې پېړۍ په پیل کې بیا موزیم شو.

د ترکیې ولسمشر رجب طیب اردوغان څو ورځې وړاندې اعلان وکړ چې د «آیا صوفیه» لرغوني موزیم، چې یو وخت لویه کلیسا وه، په جومات بدلوي او لومړی لمونځ به په کې د جولای په ۲۴ مه وشي.

دا پرېکړه له هغه وروسته اعلان شوه چې په ترکیې کې یوې محکمې پرېکړه وکړه چې «ایا صوفیه» دې نور موزیم نه وي.

ښاغلي اردوغان ویلي دي چې «ایا صوفیه» به د مسلمانانو، مسیحیانو او نورو بهرنیانو لپاره پرانیستې وي. «ایا صوفیه» ۱۵۰۰ کاله لرغونتوب لري او یو مهال د مسیحیانو لویه کلیسا وه.

خو نن ورځ دغه کلیسا د ولسمشر اردوغان له لوري په جومات بدلیږي!

۸۶ کاله وروسته په لومړي ځل (اسلامي شعار) آذان پکې تر غوږو کیږي!

او د تکبیر نعره پکې بدرګه کیږي...!

نن پکې په لومړي ځل د جُمعې لمونځ ادا کیږي....!

د جُمعې په خطبه کې د مذهبي امورو وزیر دکتور علي ایرباش لیدل کیږي چې، د منبر په زینو د توري په واسطه پورته کیږي، کله چې خطبه وایي، نو د عثماني خلافت یادګار او کلتور راتازه کولو په پار په دواړو لاسو کې یې توره هم نیولې ده!

دغه د اردغان اسلامي، اخلاقي، سیاسي او نه هېریدونکي تاریخي لاسته راوړنه بلل کیږي!

**غبرګونونه!**

ملګرو ملتونو او اروپايي ټولنې د ترکیې پر دغې پرېکړې نیوکه وکړه چې، ولې د نړۍ یوه تر ټولو لرغونې ودانۍ، ایا صوفیا بېرته په جومات بدلوي؟

د کاتولیک مسیحیانو مذهبي مشر پاپ فرانسیس هم د ترکیې د ولسمشر رجب طیب اردوغان دغه پرېکړه وغندله چې د آیا صوفیا لرغونی موزیم په جومات بدلوي.

پاپ فرانسیس د یکشنبې په ورځ جولای ۱۲ (چنګاښ۲۲) د واتیکان د سنټ پیټر په څلور لارې کې د دعا په مراسمو کې وویل چې دغې پرېکړې دردولی دی.

هغه وویل: " زه د استانبول په اړه فکر کوم. زه د سانتا صوفیه په اړه فکر کوم. زه ډېر دردېدلی یم."

د نړۍ د کلیساوو ټولنې له ولسمشر اردوغان غوښتي چې په دې اړه دې خپله پرېکړه بېرته واخلي. په استانبول کې د نړۍ د ارتودکس مسیحیانو روحاني مشر دا پرېکړه ډېره خواشینوونکې بللې ده.

یونان هم دا پرېکړه غندلې ده.

د ملګرو ملتونو تعلیمي، علمي او فرهنګي سازمان (یونیسکو) وایي چې د « نړۍ د میراث کمېټه» به یې د «ایا صوفه» حالت ارزوي.

امریکا او ځینو نورو هېوادونو هم ویلي دي چې باید داسې نه وای شوی...

ځواب!

کله چې اروپایي ټولنو، پاپانو او نورو سازمانو لخوا دغه پرېکړه وغندل شوه، نو ځواب ویل یوازې د ترکیې ولسمشر اردوغان ته پاتې شو.

نوموړي د ټولو په ځواب کې یې وویل:

دا زمونږ حق دی چې د خپل استقلالیت په اساس پرېکړه وکړو او په دغې پرېکړې انتقاد د ترکیې پر خپلواکۍ برید دی.

په یوه خبري کانفرانس کې یې وویل:

کله چې سلطان محمد رحمه الله په ۲۹ مۍ ۱۴۵۳ م کال استنبول ته فاتح داخل شو، سمدلاسه آیا صوفیا ته ننوت، ټولو اوسیدونکو ته یې امان ورکړ....

محمد الفاتح خپله نېزه د محراب په ځای کې ودروله، د شکر سجدې نه پس یې دوه رکعته لمونځ ادا کړ. همدغه سجده او دوه رکعته لمونځ د آیا صوفیا پر جومات بدلیدو لپاره لومړی اقدام و.

بیا په پنځلسمه پېړۍ( ۱۹۳۴م) کال کې د اتاترک او د نوموړي د ګوند له لوري د آیا صوفیا جومات په موزیم بدلولو په پار قانون وضع شو چې، د دوو جوماتونو په مېنځ کې باید ۵۰۰ متره فاصله( لرې والی) شتون ولري، له هغې وروسته یې آیا صوفیا پر موزیم بدل کړ.

ولسمشر په خپلو خبرو کې زیاته کړه چې، د یو ګوند له لوري جومات په موزیم بدلیدل نه یوازې تاریخي خیانت دی، بلکې د قانون ضد پرېکړه هم ده؛ ځکه چې آیا صوفیا د یو هېواد او یا د یوې موسسې شخصي ملک نه دی، بلکې د محمد الفاتح وقف شوی ملک دی او د وقف سند په لاس کې لري، خپلو مخاطبینو ته یې د محمدالفاتح د سند متن ولوسته.

**د محمد الفاتح له لوري د لیکل شوي سند خلاصه:**

که څوک هم دغه وقف شوی (آیا صوفیا) چې اوس په جومات بدل شوی، په بل څه سره بدلوي، یا یې تړي... یا هم کوم فاسق او فاسد د دې پر یو جز تعرض کوي، یا یې مسجد څخه بدلوي، دا به یو غیر قانوني عمل ګڼل کیږي...

...که چاهم دا نا مشروع عمل ترسره کړ، پرده دې د الله جل جلاله، د پیغمبر علیه السلام، د فرښتو، د حاکمانو او د ټولو مسلمانانو لعنت وي....

ولسمشر زیاته کړه، که آیا صوفیا د محمدالفاتح وقف شوی ملک نه وای، نو په جومات یې نه بدلوه.

زیاته یې کړه، مونږ د کلیساګانو ضد نه یو، ځکه چې اوس هم په ټوله ترکیا کې ۴۵۳ کلیساګانې شتون لري...

د مسلمانانو چوپتیا!

لکه څنګه چې پاپانو، اروپایانو او غربیانو له لوري، د ولسمشر دغه پریکړه وغندل شوه، همداسې باید د اسلامي امت باچایانو، حاکمانو، نورو مخور، عوامو او خواصو د دغې پریکړې تود هرکلی کړی وای، ولسمشر یې هڅولی وای، کلکه د فاع یې ترې کړې وای خو!

په ټوله اسلامي نړۍ کې د یو ولسمشر له لوري هم د دغې پریکړې هر کلی ونه شو او نه یې مسیحانو ته ځواب ووایه، بلکې ټول چوپه خوله ناست دي. شاید په زړونو او خصوصي مجلسونو کې یې دغه پریکړه غندلې هم وي....!

امیدونه!

یو لورته د الله جل جلاله په خپل قدرت او طاقت سره د افغان مسلمان او مجاهد ملت په لاس د نړۍ غټ کافر، دجالي او صلیبي لښکر په ګونډو شو، بل لور ته یې د مصطفی اتاترک په لاس جوړ شوی، سیکولریزم هېواد ته رجب طیب اردوغان په څېر شخصیت راوست...

نوموړی درګرده لګیا دی، د خپلو پلرونو تاریخ راژوندی کوي، پخپلو ځوانانو کې د عثماني خلافت جذبه راژوندۍ کوي....

امید دی چې الله جل جلاله به نور خپله اراده بدله کړې وي او غواړي به چې نور اسلامي امت یو ځل بیا پخپلو پښو ودروي، یو ځل بیا د اسلامي پخوانۍ چړچه او دبدبه تکرار کړي...

حق به راشي او باطل به په ګونډو شي!

(وقل جاء الحق وزهق الباطل) الآیة

جنګ خو یوه بوقع ده، کله د یو چا په لاس کې وي او کله د بل چا په لاس کې...

وتلک الایام نداولها بین الناس. الآیة

شاید نور د ظلم، وحشت، او بربریت تور تیارو ته پای ټکی کېښودل شي! د تل لپاره سپین سهار راوخیژي، نور کړېدلی ملت راپورته شي او د اشغال د ظلم کاسه چاپه شي.

وماذلک علی الله بعزیز



# ترکیه د خپل اصالت پر خوا ستنېږي



قاري عبدالستار سعید

د ۲۰۲۰ م کال د جولای په لسمه نیټه د ترکیې ولسمشر رجب طیب اردوغان د یوه فرمان په امضاء کولو سره د ایاصوفیا تاریخي ماڼۍ د مسجد په حیث اعلان کړ. دغه ماڼۍ چې د نړۍ له تاریخي آبداتو ګڼل کیږي او یوازې تېر کال تړي څه کم څلور میلیونه نړیوالو سیاحانو لیدنه کړې په ترکیه کې د اسلام او سیکولرزم د کشمکش په سمبول بدله شوې ده.

په ۱۴۵۳ میلادي کال کې چې کله عثماني خلیفه محمد الفاتح قسطنطنیه ( استانبول) فتحه کړه. نو دغه تاریخي ماڼۍ یې وقفي اعلان او مسجد یې وګرځوله. له هغه وروسته دا ماڼۍ د مسجد په حیث کاریدله. د شلمې پېړۍ په لومړۍ نیمایي کې چې د دوهم نړیوال جنګ په پایله کې عثماني خلافت سقوط وکړ او پر ځای یې د مصطفی کمال اتاترک لخوا د سیکولرزم په اساس ولاړه ترکیه رامنځته شوه. نوموړي په ۱۹۳۵ م کال کې دغه مسجد په موزیم بدل کړه او هلته یې د لمانځه په اداء کولو رسمي بندیز ولګاوه.

مصطفی کمال اتاترک د اسلامي شعائرو پر خلاف نور اقدامات هم وکړل، نوموړي ترکیه د سلطنت په ځای جمهوري اعلان کړه او کرار کرار یې د بې دینۍ سلسله پیل کړه د واکمنۍ له پیل یو کال وروسته یې وویل چې په ترکیه کې دین له له سیاست څخه جلا دی، د اوقافو وزارت او شرعي محاکم یې لغو اعلان کړل. وروسته یې عربي رسم الخط لاتیني ته واړاوه او اعلان یې وکړ چې د عربي قرآن په ځای دې د هغه ترکي ژباړه تلاوت کیږي.

اتاترک د مساجدو په زیاتولو هم محدودیت وضع کړ، په امامانو او خطیبانو یې دولتي امتیازات بند کړل، نوموړي به په ډاګه ویل چې: داسلام ماهیت له تمدن او پرمختګ سره جوړ نه دی( العیاذ بالله) ده به ویل موږ اوس یوازې یو تمدن لرو چې هغه اروپایي تمدن دی د دنیا ملتونه ترقۍ ته د رسیدو لپاره له اروپایي تمدن خپلولو پرته بله لار نلري.

اتاترک د ازمیر د یوه شتمن یهودي له لور ( لطیفه خانم) سره واده وکړ او د بې ستری د ترویج لپاره له خپلې لوڅې ښځې سره په ټولو ښارونو وګرځید.هغه د ترکي تربوش خولۍ پر ځای د انګریزي پیک دارې خولۍ په سرول ترویج کړل او د استانبول د اسلامي هویت د تضعیف لپاره یې پایتخت انقرې ته نقل کړ. اتاترک په ډېر قوت او وچ زور د بې دینۍ کار شروع کړ او هر چا چې به یې له پروګرام سره مخالفت کاوه په ملي خیانت تورنیدل او د اعدام سزا ورکول کیدله. اتاترک د حزب جمهوري خلق په نوم ګوند جوړ کړ چې له حکومته عبارت و او نظام یې د یو حزب دموکراسۍ په اصولو استوار و . نوموړي په ۱۹۲۸م کې د نوي اساسي قانون په جوړولو سره سیکولرزم رسمي کړ. او د دولتدارۍ لپاره یې شپږ اصول کیښودل چې د ترکیې د حکومت په رسمي نشان کې د شپږو نیزو په شکل ورته اشاره شوې وه. دغه شپږ اصول: ملت پالنه، دموکراسي، خلک، سیکولرزم، انقلاب او د دولت حاکمیت وو. د اتاترک لخوا په ۱۹۳۷ کې د اساسي قانون د تجدید په وخت

اسلام یو مخ له قانون څخه رسما وایستل شو او ولیکل شول چې رئیس جمهور او پارلماني وکیلان به د لوړې په مراسمو کې د الله په نوم د قسم پر ځای په ( شرف) قسم خوري.

په ۱۹۳۸ م کې اتاترک له پنځلس کلنې واکمنۍ وروسته د۵۲ کلونو په عمر مړ شو، څه موده په موزیم کې امانت دفن و، وروسته په انقره کې ورته لویه مقبره جوړه او جسد یې ورانتقال شو. خو تر دې وخته نوموړی په ترکیه کې د یوه بلامنازع بت په شان د قدسیت مقام ته پورته کړای شوی و، حتی تر دې چې که به چا د اسلام د پیغمبر او یا د دین د ارکانو سپکاوی کاوه اجازه یې درلوده مګر د اتاترک په سپکاوي او تش نقد یو څوک تر اعدام رسیدلی شوای. د اتاترک له مرګ وروسته یې مشهور شاګرد عصمت اینونو واک په لاس کې واخیست او کټ مټ د اتاترک په شان یې دین ستیزي ته دوام ورکړ او د حزب جمهوري خلق په واسطه یې دولت، پوځ او خلک په قبضه کې وساتل.

اتاترک او شاګرد یې عصمت اینونو د درې لسیزې ځواکمنې او ظالمانه واکمنۍ په ترڅ کې ترکیه له بنسټه تغیر کړه. هغه ترکیه چې اوه پیړۍ د اسلامي خلافت مرکز او د سترو مؤمنو فاتحانو، عالمانو، صوفیانو او غازیانو زانګو وه، د سیکولرزم په سرطان مبتلا شوه. نصاب یې د ډاروین د نظریې په اساس عیار او د الحاد د ترویج لپاره پراخ کار پیل شو. د تعلیم، فرهنګ، رسنیو، دولتداري او اجتماع په بیلابیلو برخو کې د بې دینۍ د ترویج او خپرولو لپاره یو اړخیزې هڅې پیل وې تر څو ولس له خپل دین اسلام او خپل متدین فرهنګ او فکر څخه پردی کړي. د سیکولرزم او ګمراهۍ د دې توپان په وړاندې وخت په وخت د دیني مبارزینو لخوا قیامونه کیدل خو د ترکیې د ظالم پوځ او کمالیستو جنرالانو لخوا په ډیره سختۍ ځپل کیدل.

خو د ترکیې مؤمن ولس هیڅکله امید ونه بایله، هغوی پرلپسې خپل ویاړلي اصالت او بایللي دیني هویت ته د ستنیدلو لپاره لاس او پښې وهل. دغه مبارزې کله د دیار بکر د شیخ سعید پیران نقشبندي د مسلح پاڅون په حیث څرګندېدې او کله هم د کردستان د بدیع الزمان سعید نورسي د اصلاحي حرکت په شکل. ترک ولس د نهیلیو په سختو توپانونو کې هم د امید ډیوې بلې ساتلې او په دې یې باور درلود چې یو وخت به دغه امتحاني مرحله پای مومي او دوی به خپلو پاکو هیلو ته رسیږي.

په وروستیو لسیزو کې داسې معلومیږي چې په ترکیه کې د سیکولرزم د غالبیت او اسلامي فکر د محکومیت معادله په سرچپه کیدو ده. څو لسیزې وړاندې انجنیر نجم الدین اربکان په ډیر مهارت په ترکیه کې د اسلامپالو د یووالي او تنظیم کار پیل کړ. تر دې چې د نوموړي ګوند حزب رفاه وتوانید د ۱۹۹۵ پارلماني ټاکنو کې د ۲۱ فیصده په ګټلو سره تر ټولو احزابو مخکې شي. په دې ډول نجم الدین اربکان د لومړني اسلامپال په حیث د ترکیې لومړی وزیر وټاکل شو. اربکان له همدې منصبه په استفاده له پراخو اختیاراتو سره د اسلامي شعائرو د احیاء هڅه پیل کړه. له پراخو اقتصادي اصلاحاتو علاوه یې د استانبول تقسیم سیمه کې د لوی اسلامي پوهنتون د جوړولو کار پیل کړ،.ښځو ته یې اجازه ورکړه چې له حجاب سره دولتي ادارو ته تلای شي، حج او عمرې ته د زمینې تګ اجازه یې هم اعلان کړه تر څو ډیر خلک دا عبادت ترسره کړی شي. په ۱۹۹۷ کال روژه کې یې د تصوف د طریقو ګڼ شمیر مرشدان د افطار دولتي میلمستیا ته وبلل. چې دا کارونه یې د سیکولر جنرالانو په مزاج درانه تمامیدل.

په پای کې اربکان د سیکولر جنرالانو د دسیسو او فشار له امله استعفاء ته اړ او په سیاسي فعالیت یې بندیز ولګېد. له نوموړي وروسته یې تکړه شاګرد رجب طیب

اردوغان د سیاسي مبارزې واګې په لاس کې واخیستې. د ۲۰۰۲ کال دنومبر په دریمه چې د ترکیې پارلماني ټاکنې وشوې، د اردوغان لخوا نوي جوړ شوي عدالت او پراختیا ګوند د پارلمان له ۵۵۰ څوکیو څخه ۳۶۳ وګټلې چې دا یوه نااټکله بریا وه. له دې وخته د ترکیې سیاست د اردوغان او حزب عدالت و پراختیا سره وتړل شو چې تر اوسه ورباندې واکمني لري.

اردوغان د بل هر سیاسي رهبر په شان مخالفین او موافقین دواړه لري. خو دا په ځغرده ویلای شو چې نوموړی په ترکیه غوندې سیکولر هیواد کې د بل هر سیاستوال په نسبت د اسلام او مسلمانانو په خیر او ګټه دی. نوموړي لکه څنګه چې د ترکیې د اقتصاد او سیاسي پرستیژ لپاره مهمې کارنامې کړي،ورسره یې د اسلامي شعائرو د احیاء په برخه کې هم اغیزناک ګامونه اخیستي.

د اردوغان یوه ستره کارنامه د ترکیې د سیکولر کمالیست پوځ تر قبضه لاندې راوستل دي. هغه پوځ چې په تیره پیړۍ کې یې بیا بیا د اسلامپالو سیاسي، نظامي او اصلاحي خوځښتونه ټکولي او له پښو غورځولي وو. له دې علاوه د فلسطین، برما او نورو سیمو د مستضعفو مسلمانانو د دفاع لپاره د نوموړي غبږ اوچتول که څه هم د ده مخالفین یې ریاکارانه بولي خو پخپل ځای یوه او د قدر وړ پالیسي ده.

اردوغان د ترکیې د معارف له نصاب څخه د ډاروین نظریه او نور الحادي افکار حذف کړي او په حجاب د بندیز قانون یې لغو اعلان کړی دی. د نوموړي ستر مخالفین په ترکیه کې د آیتې ایستانو ټولنې، فمینستان او نور لیبرالان دي چې اردوغان د ترکیې سیاسي نظریې (سیکولرزم) ته په نه ژمنتیا تورنوي. اردوغان دغه راز د فرهنګ، معارف او نورو برخو کې هم د اسلامي اقدارو او شعائرو د احیاء لپاره د حساب وړ ګامونه اخیستي. په وروستیو کې د ایاصوفیا مانۍ مسجد اعلانول د نوموړي هغه سمبولیک اقدام و چې د ترکیې مؤمن ولس یې له ډیر پخوا څخه هیله درلود.

په دې کې شک نشته چې اردوغان او حاکم ګوند یې لا هم مشکلات لري. ترکیه لا هم د ناټو غړیتوب لري او د افغانستان د اشغال برخواله ده. اردوغان له هرڅو هڅو سره سره نه دی توانیدلی چې د شرابو او زنا په اړه د ترکیې سیکولر قانون تغیر کړي او په دې محرماتو بندیز ولګوي. ترکیې له اسرائیلو سره هم دیپلوماتیک روابط پالي او کله کله خو یې ځینې اقدامات د اسلامپالنې په نسبت د پان ترکیزم نظریې ته ډیر ورته وي. خو له دې ټولو ستونزو سره سره که د نوموړي اسلامي اصلاحات سیاسي ریا ونه ګڼو نو د تشاؤم پر ځای د تفاؤل په غوره بللو سره ویلای شو چې ان شاءالله له نږدې یوه پیړۍ پردیتوب او له خپل اصالت څخه له تیښتې وروسته تاریخي ترکیه یو ځل بیا خپل اسلامي اصالت ته ستنیږي چې دا په نړیواله کچه د ټول اسلامي امت د راتلونکې لپاره ښه زیری ګڼل کیدای شي.



## حــرص

د مصر نامتو شیخ علی طنطاوی په خپل کتاب (لیدلی اوریدلی) کی لیکی چه یو موتر له سورلیو ډک وو خو بیا هم موټروان یو خوا بل خوا کتل چی کوم سپرلۍ ووینی او پورته یې کړي، پدې کې ناڅاپه موټروان موټر ودراوه، ناستو کسانو پوښتنه وکړه چې موټر دی ولې ودراوه، موتروان وویل چی دلته یو سپین ږیری ولاړ وو را پورته ته می کړ، خلکو ورته وویل چی کوم سپین ګیری موږ خو یې نه وینو ، دی خبرو په حال کی وو چی موتروان مړ شو.

(دا په اصل کی خپل مرګ یعنی د مرګ ملایکه یی لیدلې او راپورته کړې وه، مرګ فیصله یې شوې وو خو بیا هم د دنیا حرص راخستی وو)

# سوځیدلي موټر، چاودلي زړونه

نصیب ځدراڼ

د لوګر ولایت برکي برک ولسوالي نه بابوس ته په لاره یوه دښته ده، که په اوسنیو وختو کې مو پیښنه ور وکړه نو هلته د یوه موټر سوځیدلی او زنګ وهلی کباړ پروت دی، دا د فیضان موټر دی چې ډرون ویشتلی ؤ او فیضان پکې شهید تر اوسه په موټر سپین بیرغونه رپاند دي.

سپین بیرغ په سوځیدلي موټر لګول څه مطلب شو؟ مطلب یې دا شو چې طالبان په خپل دریځ دومره کلک دي چې له شهادت نه پس یې هم له خپل بیرغ د لاسه ورنکړ ، په سوځیدلي موټر او په قبر یې هم سپین بیرغ رپاند دی.

کله مو د باګرام او څرخي پله د زندانیانو په لاس جوړې شوې تحفې لیدلې؟ په سپڼسیو، مشکڼیو او زرتارو یې ،راکټ، ټوپک،بای فور موټر، سپین بیرغونه او د خپلو مشرانو نومونه جوړ کړي وي، او زندان ته چې څوک ملاقات ته ورځې هغوی ته یې ډالۍ کوي.

دا به هم دلته پریږدو.تیره ورځ مې د نجیب ننګیال عکس ولید، سپینې ماڼۍ مخې ته ناست و، ویل یې طالبانو خو په شلو کالو کې ونه نړوله دومره فدایان بیا څه شول؟ بل پوسټ یې کړی و، ویل یې زه او تواب غورځنګ دواړه د تهدیداتو سره مخ وو، د طالبانو په تور لیسټ کې وو،تواب غورځنګ د رواني فشار سره مخ ؤ او زړه یې وچاود ( زه روغ امریکا ته ورسیدم او زړه مې هم روغ دی).

دا هم دلته پریږدئ، هلمند کې برتانویانو د خپل پوځي مرکز(باسټن) له منځه وړلو ویډیو نشر کړې ده، سپکې درنې وسلې،تجهیزات هر شی له ځان سره وړي، او کوم څه چې د دوی د کار نه دي هغه ماتوي او ختموي یې، د اردو یو عسکر په دې ویډیو کې خبرې کوي وایې" کنکریټي دیوالونه ډېر درانده دي ،کنه دا یې هم نه راته پریښودل".

له دې هم تیر شئ، په خوست صحراء باغ کې د (سارلیرنو) په نوم د بهرنیو یوه پوځي مرکز د طالبانو د برید ویډیو نشر شوې ده، یولس تنه طالبان له خپلو وسلو سره پوځي مرکز ته ور داخل شي، یو طالب خپل موټر ته اور ورته کړي، ځکه په دې یقین لري چې موږ به بیرته ژوندي نه راوځو هسې نه دا موټر مو د دوښمن لاس ته ولویږي.بیا جنګ پیل شي او ټول هم هلته شهیدان شي.

په دغو کیسو مې ځکه راو ګرځولئ چې د دوو مخالفو ډلو په سختیو او امتحان کې فرق در معلوم شي.

یو د نجیب ننګیال، تواب غورځنګ او مجید قرار ژوند ته خطر ؤ چې له وطنه وتښتیدل؟ او زړونه یې وچاودل؟ یو دوی له غوښو جوړ دي او طالب له کاڼي جوړ دی؟د طالبانو ژوند ته خطر نشته؟

طالبان ولې وطن نه پریږدي؟ زندانو ورباندې ډک دي، هدیرو کې چې نوي قبرونه جوړ دي ډیری طالبان دي، کورنۍ یې بې سرپرسته پاتي دي، کومه جذبه ده

چې دوی په خپل دریځ ټینګ پاتي شول؟او د دوی ځنو له وارخطایې ژړونو چوي؟

د سپینې ماڼۍ مخې ته ناست نجیب ننګیال وایې طالبانو خو سپینه ماڼۍ ونه نړوله ؟ عجیبه سپین سترګې ده، که امریکا کې سپینې ماڼۍ ته ونه رسیدل خو افغانستان کې صحراء باغ،باګرام،شوراب په شمول ټول لوی پوځي مراکز یې له بریدونو لاندي راوستل، دا هر یو د امریکایې غرور نبنه او په خپل ځای سپینه ماڼۍ نه وه؟ امریکایان یې دي ته یې اړ کړ چې اوس لګیا دي د یرغل ټغر ټولوي او باسټن غونډي خپل مراکز خپل نړوي، د دي هر پوځي مرکز نړیدل د سپینې ماڼۍ د غرور نړیدل نه دي؟

ولي یو په امتحان او تکالیفو کې خوشحال دی، په خپله ژمنه دومره کلک دی چې په سوځیدلې موټر ان په خړ قبر هم سپین بیرغ ولاړ دی؟ یو ولي دومره مایوسه دی چې له خپلو بهرنیو ملګرو ګیله کوي چې موږ د نیویارک او واشنګټن د امنیت په خاطر قربانۍ ورکړي او دوی یواځې کنکریټي دیوالونه پریښودل نو یې هر څه یوړل؟ ولي یو د هغه ټوپک سره ولاړ د کابل دروازه ور ټکوي او د داخلیدلو په درشل کې او مخالف پښې یې په زرهي موټر او کنکریټي دیوالو کې نه ټینګیږي ژړونه یې چوي او ځني د سپینې ماڼۍ لمن ته پناه ور وړي؟

د دي سوالو ځواب تاسې راپیدا کړئ خو زه وایم چې د چا ملاتړ یا مخالف کول دومره مهم نه دی لکه دا چې مهم دی چې ته څومره د خپل نظر یا فکر ته وفادار یې، څومره د قربانۍ سړی یې او امتحان کې په خپل دریځ استقامت که له خپلې خبرې په شا کیږي.



# مونږ ته د قرانکریم نصیحت !

فَتَبَيَّنُوا

د خبري ښه تحقیق کوی.

په لیږ خبر جنګ جدال بدګماني لانجه مه کوه ښه تحقیق کوه بیا اقدام کوه.

وَ اَقْسِطُوا

له عدل کار واخلی عدل کوی.

د دوو کسانو مابین کې په فیصله کې عدل انصاف کوه،په تول او ترازو کې عدل او انصاف کوه او.....

وَلاَتَلْمِزُوا

یوبل ته پیغور مه ورکوی.

چاته د غریبي،بدرنګي،بد شکلي، او...پیغور مه ورکوه.

وَلاَيَغْتَبْ

یو دبل غیبت مکوی.

یو په بل پسې خبرې مه کوی که په هغه کې هغه عیب وي او که نه وي چاپسې داسې خبرې مه کوی چې هغه یي بده ګڼي او خپه کیږي.

فَاَصْلِحُوا

خپل مابین کې جوړه او صلحه کوی.

د مسلمان له مسلمان سره لانجه دعوه جنګ وي کوشش وکی صلحه او جوړه وکی د صلح زیات اجر ده.

وَلاَيَسْخَرْ

یو په بل مسخرې مکوی.

یو په بل مسخرې مه کوی دچا په شکل یا لباس یا کور یا خبرو باندې مسخرې او ټوکې مه کوی استهزاء یي مه کوی.

وَلاَتَنَابَزَوْ بِاالأَلْقَابْ

یوبل په بدو لقبو او نومو مه یادوی.

یو بل په بدو لقبو او نومو مه یادوی ټیټ قد..جګ قد او....

وَلاَتَجَسَّسُوا

جاسوسي او تجسس مه کوی.

یو بل ته خبرې مه نقلوی د شیطانت په نیت د یو خبري بل ته وړل یا دچا پټ حال ښکاره کول ...

اِجْتَنِبُوْ كَثِيْرَا مِنَ الَّظنْ

ځان له ګمان کولو نه اوساتی.

ځان له ګمان نه اوساتی په چا باندې بد ګمان مه کوی تر څو مو چې یقین سوی نه یي تر هغو پوري خبر مه کوی...

م فاروقی



# دسمنګان برید دښمن ته کوم پیغام لري؟

خوړمن افغان

د ۲۰۲۰ میلادي کال د جولائي میاشتې په دیارلسمه د سمنګان ولایت مرکز کې د ملي امنیت یوه ستره څاله د اسلامي امارت د استشهادي کنډک د دریو تنو فدایي مجاهدینو له لوري تر برید لاندې راغله، برید تر ډېره دوام وکړ، چې په پایله کې لسګونه د ملي امنیت کارمندان او لوړ پوړي چارواکي مړه او ژوبل سول.

هیره دي نه وي چې د دوحې له توافقنامې څخه را وروسته د طالبانو له لوري په ښارونو کې پر کابل اداره دغه تر ټولو ستر برید و چې لامله یې د ځینو خلکو زړونه ته دا شبهه دننه سوې چې ګني طالبانو له توافقنامې څخه سرغړونه کړې او د سولې بهیر یې زیانمن کړ!

که حقیقت ووایو نو د سمنګان فدایي برید بالکل د توافقنامې خلاف ندی

په توافقنامه کې هیڅ داسې قید نسته چې دا ډول بریدونه دې نکیږي، د توافقنامې له متنه څخه جوتیږي چې طالبان پر کابل اداره هر ډوله بریدونه کولای سي خو دا چې طالبانو د دوی پر مهمو ځایونو له بریدونو ډډه کړې او د دوی رعایت یې کړي تر څو سیاسي فضا نورماله کړي او د سولې لپاره لار هواره کړي.

خو د کابل اداره نه سولې ته خوشبینه ده او نه ورته جدیت ښیې، همداسې د سولې په وړاندې په هیڅ ډول خنډونو باندې صرفه نکوي، امریکایانو یې هم بشپړ ملاتړ کړی، ډیر ځله په چاپو، بمبارونو او ډرون وارونو کې هم مرسته ورسره کړې چې دغه برید یې سرغړونه څه؛ بلکې له دوی څخه یو غچ او انتقام یې بللای سو.

د سمنګان برید دښمن ته ځانګړی پیغام لري چې کابل اداره دي د مشرانو د انعطاف، ترحم، همدردۍ، سیاسي او اخلاقي مسؤلیتونو څخه ناوړه استفاده نه کوي چې د غرور پر نیلي سپره وي، سرټمبګۍ ته یې ملا تړلې وي د سولې پروسه له ځنډ او خنډ سره مخ کوي، بندیان نه ازادوي، پر ملکي خلکو چاپې وهي، وحشتونه ترسره کوي،

او دغه بهیر سبوتاژ کوي، که لاس په سر نسې نو به تل د داسې بریدونو سره مخ کیږي او د سر ماغزه به یې ځای ته راځي.

امریکایانو ته هم یو جوت پیغام پرېږدي چې دا برید په داسې حال کې ترسره سو چې د دوحې د موافقتنامه لومړی پړاو( ۱۳۵ شپې) پوره سوې، که مقابل لوری موافقتنامه عملي نکړي او خدای مکړه د دغه څورلس میاشتې په موده کې افغانستان تخلیه نکړي نو شونې ده چې تل به د داسې استشهادي او انغماسي بریدونو سره مخ وي او یوه ورځ به د زور له لاري افغانستان پرېږدي.

ان شاء الله




# نړیوالو خوځښتونو لپاره

## اسلامي امارت د وحدت غوره سمبول!

■ لیکوال: حمادافغان شیرزاد

د یوه خوځښت او صف د کامیابۍ تر ټولو غوره او مهم راز د هغه صف اتحاد او جوړښت دی، که چېرې د یوې ډلې او یا هم خوځښت تر منځ یووالی او همغږي نه وي هغه خوځښت دوام نشي پیدا کولی ، د مشکلاتو او تکلیفونو پر وخت مقاومت نشي کولی، خپل حیثیت او دبدبه برقراره نشي ساتلی ، د مشرانو د مړینې پر وخت دا خوځښت او صف پر ټوټو ویشل کیږي او په آخر کې بالکل له منځه ځي.

که په تېر تاریخ نظر واچوو نو د ډېرو قوي او منظمو تحریکونو، خلافتونو ، دولتونو او خوځښتونو د ختمېدو او له منځه تللو ستر لامل خپل منځي جګړې وې ، او د خپل منځي جګړو سبب په صفونو کې د یووالي او اتحاد نه شتون و.

افغانستان د نړۍ اوپه خاصه توګه د اسیا یو لرغونې او جګړو ځپلې هیواد دی ،دلته دا څو لسیزې جګړې او بدبینۍ روانې دي . نو کوم هیواد کې چې جګړه وي هلته بیا د ویرانۍ ، قتل او قتال سربیره بې شمیره ګوندونه او خوځښتونه هم پیدا کیږي او وده کوي ، دلته هم هغه شان وشول ډېر ګوندونه او خوځښتونه جوړ شول ځینو یې بیا ډېره ترقي وکړه او پرمخ لاړل ، خو د زیاتره ګوندونو او خوځښتونو اوس تش نوم او نښان پاتې دی دا ځکه چې په هغوی کې جوړښت ، اتحاد او یووالې نه و ، مشران یې خودغرضه او چوکۍ پرسته وو، د کشرانو مینه ، شفقت او د هغوی د قربانینو خیال ساتل یې زړه کې نه و ، بلکې د جګړو ، زور ، زیاتي او ظلم له لارې یې په یوه سیمه او قوم حکومت کولو ، خپله ډله او ټپله یې غټوله چې نن یې تش نوم او نمایش پاتې دی.

اسلامي امارت هم د یو خوځښت په شکل په افغانستان کې د یوه سپیڅلي هدف لپاره هغه وخت راپورته شو کله چې هیواد د شر ، فساد ، پاټکسالارۍ ، خپل منځي جګړو او بدبینیو ښکار و ، هر طرفته د ظلم او زور خبرې روانې وې ، خلکو د کوم عمر او صلاح الدین ایوبي انتظار کولو کوم چې الله تعالی د لوی ملاصیب او اسلامي امارت په شکل کې ورکړ ، چې ډېر ژر یې ټول هیواد کې سرایت وکړ او په لنډه موده کې د افغانستان حاکمان شول ، یو نظام او اداره یې رامنځته کړه د امن یو داسې فضا یې برابره کړه چې د ټولې نړۍ خلکو پرې اقرار وکړ.

کله چې امریکا یرغل وکړ او د اسلامي امارت نظام یې ړنګ کړ ، په ډېر لږ وخت کې دا صفونه بیا منظم شول ځکه چې له اوله دا صف په اتحاد جوړ او روان شوې و ، نو ځکه بیا په ټول هیواد کې د کفر او یرغل په وړاندې وسلواله مبارزه پیل کړه ، کشرانو په خورا اخلاص قربانۍ ورکړې او مشرانو یې ښه رهبري وکړه چې الله تعالی پرې مثبته نتیجه مرتبه کړه او امریکا یې د مذاکراتو میز ته کینوله.

## په نظامي ډګر کې د صفونو وحدت او همغږي!

اسلامي امارت په ټول هیواد کې تر دا اوسه په وسلواله مبارزه بوخت دی ، د هیواد په ټولو ولایتونو کې پراخه حضور لري ، پنجشیر چې د طالبانو سرسخته دښمن ولایت و ، اوس په هغه ولایت کې ځایي خلک د دې صف مسؤلیتونه پر مخ وړي ، د هر ولایت لپاره نظامي مسؤلین ، والیان او ولسوالان پر یو غږ او حکم ټاکل کیدل او کیږي ، د دې صف د څیري کولو لپاره یرغلګرو او اجیرو غلامانو یې هر وخت ډول ډول دسیسې رامنځته کولې ، په نظامي ډګر کې یې کله د ډلو او کله بیا د پوره امارت تر مینځ د ډلو او تپلو کاذبې ادعاوې کولې ، کله یې بیا د حقاني شبکې پر نوم غوښتل چې د دې صف نظامي برخه وویشي خو هر وخت دوی په خپلو دسیسو کې ناکامه راغلي ، دا ځکه چې د دې صف جوړښت دا پر اتحاد او یووالي و ، کشران یې د مشرانو مطیع ، فرمانبرداره او پخپلو مشرانو پُراعتماده وه .

د امیرالمؤمنین ملا محمدعمر مجاهد رح د وفات او رحلت پر وخت دښمنانو تر اخیري حده کوښښ وکړ چې دا صف متفرق او د کشرانو حوصلې ماتې کړي او یقینا دا یو ډیر نازک او حساس وخت وي ځکه زیاتره ګوندونه او خوځښتونه د خپلو مشرانو په مړینه متفرق او په ټوټو ویشل کیږي نو له همدې امله د کفارو سترګې دغې ورځې ته وې ،خو لله الحمد د الله په ځانګړې نصرت ، د مشرانو ځراکت ، هوښیارۍ او ویښتیا په دې حساس وخت کې دا صف له ټوټه کیدو وژغورلو او دښمنان یې ټول ناکام او یخ کیناستل .

زمونږ پر نظامي میدان کفارو او غلامانو ډیر زیات او بې بنیاده تورونه لګولي او دلته یې د یوس او شلو ډلو ادعاوې وکړې خو الحمدلله د اوربندونو او اخترونو پر مواقعو اسلامي امارت د دښمنانو دا تور او ادعا هم کاذبه او بې بنیاده ثابته کړه.

یو اخیري کوښښ چې کفارو د نظامي ډګر د ټوټه کولو لپاره وکړ هغه دلته د فتنه ګرو ډلو پیدا کول و، دوی د داعش په نوم یوه ستره فتنه راپیدا کړه او طالبانو ته لوی سرخوږي جوړ کړ خو د تیر په څیر دا ځل هم اسلامي امارت د سختو مقاومتونو او قربانیو وروسته دې فتنې ته د پای ټکی کیښود او اسلامي امارت روغ او سالم راووت.

## سیاسي ډګر کې د طالبانو وحدت!

د نظامي مبارزې تر څنګ د طالبانو تحریک سیاسي مبارزه هم پرمخ وړي ، چې الحمدلله اسلام او هیواد ته یې له دې لارې هم مهمې او سترې بریاوې راوړې، تر ټولو غټه بریا د امریکا د زبرځواک ماته منل ، پر هغې لاسلیک کول او له دې ځایه نور د خپل اشغال ختمولو ته اړ شول ، پر هغې لاسلیک کول او له دې ځایه نور د خپل اشغال ختمولو ټرون و ،دلته هم کفر او غلامان یې په آرامه ندي ناست بلکې په مختلفو نومونو یې خلګ راپورته کړي او هغوی د طالبانو د نمایندګي ادعاوې کړي کله یې د یوې شورا او کله یې دبلې شورا نوم راپورته کړی ، کله یې په ترکیه او کله نورو هیوادونو کې دفترونه خلاص کړي خو تل په خپلو هڅو او کوښښونو کې ناکامه پاتې شوي او داسې یوه تاریخي ماته یې وخوړه چې د همدې لوړپوړو چارواکو له خولو وخت پر وخت د اسلامي امارت د وحدت صفتونه وشول او د خپلو خلکو تورونه یې بې بنسټه او بې بنیاده وباله.

اسلامي امارت په سیاسي ډګر کې چې له اوله کوم پلاوې ټاکلی و، تر ننه همغه پلاوی د دښمن په وړاندې په مبارزه بوخت دی .

## په میډیا او ټولنیزو رسنیو کې د طالبانو وحدت!

میډیا او رسنۍ د کفارو په لاس کې دي او تل یې له دې لارې د ځوانانو د بې لارې کولو کوښښ کړی ، همدا رسنۍ د کفارو یو زهرجنه وسیله او د اشغال ژبه یاده شوې او پوره همکاري یې ورسره کړې ، ځکه خو

نړیوالو افغانان یو ترهګر قوم باله رسنیو او کفارو مونږ غلط معرفي کړي و ، نړیوال د افغانستان او نورو اسلامي هیوادونو له حقیقي حاله ناخبره وو خو ټولینزو رسنیو د کفارو دا حال د دنیاوالو پر وړاندې بربنډ کړ ، په ټوله نړۍ خصوصا دلته په افغانستان کې اسلامپالو مبارزینو د کفارو او غلامونو حقیقي څیرې دنیاوالو ته وښودلی.

د اسلامي امارت مینوالو او پخپله د طالبانو تکړه لیکوالانو او تحلیلګرو وخت پر وخت د دښمن هره دسیسه د هغوی استعمار ، اشغال او دیمکراسي خلکو ته ښکاره کړی، او د دښمن هر فریب او جعل یې رسوا کړی .

په دې ډګر کې هم اسلامپال مبارزین په پوره وحدت او د اسلامي امارت تر پالیسۍ لاندې خپله مبارزه کوي ، هره موضوع او هره خبره په شریکه سره پر مخ وړي ، مشران هر وخت دوی ته توصیې او اعلامیې خپروي چې دوی ورسره لا تشویق کیږي، الحمدلله د کفارو او غلامانو رسنیو د دوی پر پُر اثره فعالیت راپورونه جوړ کړي او دوی یې کامیاب ګڼلي دي.

د اسلامي امارت مشرانو هر وخت د خپلو پیغامونو او نورو لارو د نړیوال خوځښتونه په خاصه توګه د افغانستان حزبونه او ډلی ټپلی وحدت ته رابللي او دا یې د اسلام ، هیواد او ټول امت ګټه بللی.

په آخره کې د اسلامي امارت له مشرانو هیله کوم چې د دې صف وحدت او یووالې لا پیاوړې کړي تر څو دښمن ته هیڅ کومه کمزوري په لاس ورنشي .

# نشنلیزم او تغریب!!

له اسلامي نړۍ او افغانستان څخه د معاصرو صلیبي ښکېلاک ګرو تر وتلو وروسته به هم بالواسطه د استعماري موخو د لاس ته راوړلو په برخه کې له دوی سره تر ټولو غوښن رول د نیشنلېستانو یا ملیت پالونکو وي. دا خبره شاید هغه فکري جمود ځپلي ځوانان بیخي ونشي زغملی د کومو له سرونو چې د سترو نیشنلېستانو د کاذبو شعارونو او غوړمالیو په نشه کې کاڼې جوړ دي او هیڅ بل ښه فکر او خبره پرې اغیز نسي کولی؛ خو هغوی پرې پوهیږي چا چې د اسلامي امت د عظمت د تاریخ پنډ پنډ کتابونه لوستي او هضم کړي وي. اسلامي امت له تعصب او ملیت پالنې ډیرې داسې پخوانۍ تجربې لري چې د تاریخ په پاڼو کې ثبت دي. اندلس (هسپانیه او پرتګال) زموږ ؤ، د یو وجود په څیر د مسلمانانو په نوم ورغلو هلته مو په پیړیو پیړیو راج وکړ؛ خو بیرته د عرب، ببرر، سپین پوستي او تور پوستي په نوم د ښځو، واک او ماڼیو په نشه کې ترې راوشړل شوو. هند زموږ دوهم اندلس ؤ، هلته مو د واک او ځواک یو نه هیریدونکی تاریخ پروت دی، هندوان مو د بشریت له نوم سره آشنا کړل، مسلمانان ورغلو خو د هندي، عرب او پټان په نوم تر پاشل کیدو وروسته رانه پاتې شو، داسې چې اوس څوک د خپل مسلمان مظلوم ورور په ننګه سپړ هم نسي کولی. موږ په ترکیه کې داسې خلافت کړی چې له اوسنۍ روسیې او فرانس به مو قلنګ اخیست، تر هغې چې د خلافت قیصه د مسلمان په نوم د وروګلوی په خوله کېدله هر څه سم وو؛ خو کله چې د عرب، ترک او کرد په نوم د نشنلیزم ذهر مو په وجود کې وپاشل شول، د عثماني خلافت مضبوټې متې مو کمزورې شوې، د پاکو عقیدو او ټینګو ارادو په وړاندې کمزوری سیکولریزم په دې بریالی شو چې د اسلامي خلافت دا وروستی لړۍ ختمه او تر ننه پورې مړه کړي...

نن سبا نشنلیزم، تغریب او سیکولریزم غاړه غړۍ په دې لاره روان دي، د صلیبي استعمار وروسته به د غرب ډیر حساب هم په همدوی وي... په دې حساس وخت کې ددې خلکو رسوایي او د ملت بیداري ښه زیر دی، موږ به دا ځل له دې سوري نه چیچل کیږو او ان شاء الله چې ددې ښامار زهر به اغیزه نه کوي... نوید افغان

لیکنه: شهامت افغان

# د دوحې د توافق نامې په اساس

## د مهمو اډو تخلیه او د ګوډاګیانو لوېدلی مورال

د ۲۰۲۰ میلادی کال د فروری میاشتې په ۲۹ نیټه د افغانستان د اسلامی امارت او د امریکا د متحده ایالاتو تر منځ توافق نامه لاسلیک شوه چې په نتیجه کې به یی د ۱۴ میاشتو په موده امریکایی ځواکونه په مکمله توګه له افغانستان څخه وزی او طالبان به هم د وتلو لپاره خوندي لاره ورکوی او په دوی به بریدونه نکوی همدغه راز به دطالبانو ۵۰۰۰ پنځه زره هغه زندانیان ازادیږی چې طالبانو یې له وړاندې لا امریکایانوته نوم لړ سپارلی وو او طالبان به هم د افغان حکومت ۱۰۰۰ زرنفره اسیران ازادوی چې په مجموع کې به ټول ۶۰۰۰شپږ زره بندیان ازادیږی او همدغه راز به د بندیانو تر ازادیدلو وروسته متصل دمارچ په لسمه نیټه به بین الافغانی مذاکرات شروع کیږی یاد تړون په نړیواله کچه له استقبال سره مخ سو اوټولویې هرکلی وکړ د ملګرو ملتونو امنیت شورا او اروپایی ټولنې هم ددې موافقې تاید وکړ خو یوازینۍ اداره چې یاد تړون ته یې غبرګون وښود هغه د کابل کاواکه اداره وه دوی چې دقدرت او ډالرو په نشه مست دی هیڅکله هم نغواړی چې دقدرت واګی دې د دوی له لاسه ووزي ځکه خویې په مستقیم او غیر مستقیم ډول دیاد تړون د مادو په تطبیقولوکې دخنډونو په ایجادولو پیل وکړ.

لومړی یې د بندیانو له ازادولو څخه چورلټ انکار وکړ بیا کله چې د امریکایانو فشار ورباندې راغی نو په خپل سر یې د یو شمیر بندیانو د ازادولو په لړی پیل وکړ خو طالبانو ورسره هغه زندانیان ونه منل او په دې یې ټینګار وکړ چې زندانیان باید زموږ دلیست مطابق او زمونږ تر نظارت لاندې ازاد شی همغه وو چی د طالبانو یو تخنیکی ټیم کابل ته سفر وکړ ار څو دبندیانو دخلاصون پروسه له نږدی وڅاری له لږ وخت تیرولو وروسته یاد ټیم بیرته راستون شو وجه یې هم داوه چې د کابل ادارې یې په مخ کې خنډونه جوړول دځه وخت لپاره داپروسه کمزورې شوه خو د امریکا د ځانګړی استازی زلمی خلیلزاد کابل ته له سفرنه وروسته یاده پروسه یوځل بیا شروع سوه او لاهم روانه ده د طالبانو تخنیکی ټیم د دوهم ځل لپاره کابل ته سفر وکړ او د زندانیانو د خلاصون لړۍ یو ځل بیا ګړندۍ شوه او په دې توګه د دواړو لوریو زیات شمیر زندانیان ازاد شول د کابل اداره چې نوره له هر څه نه ناهیلی سوه بله بهانه په لاس نه ورتله په دې وروستیو کې یې یوځل بیا شور جوړ کړ چې یو شمیر زندانیان به نه ازادیږی ځکه چی هغوی ډیر مهم کسان دی او یا هم په قتلونو متهم دی خو داسې معلومیږی چی هغه شمیر بندیان هم کرار کرار ازادیږی

- داسې ویل کیږی چې د طالبانو په پنځه زره کسیز لیست کې ګڼ شمیر د طالبانو مهم چارواکی او افراد شامل دی چې د کابل اداره نه غواړی هغوی دې ازاد شی ځکه چې د کابل اداره همدا دځان لپاره د امتیاز اخیستلو او په طالبانو د

فشار واردولو لپاره وروستي چانس بولي او که دا زندانیان هم ازاد شي دوی به په تش میدان پاتې شي او بیابه په طالبانو د فشار واردولو لپاره نور څه په لاس کې نلري.

• خودوی له دې نه ناخبر دي چې په طالبانو يې ترننه پورې کوم فشار داسې ندی ثابت شوی چې دوی دې له خپلې خبرې او مسیر څخه تیر کړي نو آیا د دوی دا حربه به کار ورکړي؟ آیا دوی به وتوانیږي چې له دې لارې په طالبانو فشار وارد کړي؟ کلّا وحاشاَ ! هیڅکله هم نه بلکه داحربه به يې هم د نورو حربو په څیر ناکامیږي او دطالبانو دریځ به د دوی په خلاف لا پیاوړی کیږي.

• همدغه راز د دوحې د تړون د مادو دعملي کولو په لړکې بل مهم ګام چې د امریکایانو بشپړ وتل او د فوځی اډو تخلیه ده دالړۍ هم په چټکۍ سره په مخ روانه ده تېره ورځ رسنیو راپور ورکړ چې امریکایانو خپلې ۵ پنځه مهمې پوځی اډې تخلیه کړې دي په دې اډو کې د هلمند کمپ بیستڼ یاښوراب په څېر مهمې اډې هم شاملې دي ښوراب چې یو وخت په نړۍ کې د برطانوی ځواکونو تر ټولو لویه اوځواکمنه فوځی اډه وه خو اوس مهال په یوه دښته بدلېدونکې ده.

• برطانوی صدر اعظم ټونی بلیر د ښوراب فوځی اډې نه د لیدلنې په مهال په ډېر غرور سره وو یل چې موږ به له دې ځای نه د نړۍ د یویشتمې پیړۍ پربکړې کوو خو نن يې هغه خبرې هسې تش خیالونه ورته ثابت شول اوبس! امریکایان او س مهال د ښوراب فوځی اډې په تخلیه بوخت دي هر څه چې د وړلو وی دوی يې بیرته له ځانه سره وړی اوکوم څه چې د وړلو لائق نه وی هغه به افغان ځواکونوته پریږدي تیره ورځ یوه ویډیو ټولنیزو رسنیو کې خپره شوه چې امریکایان د ښوراب اډې په تخلیه بوخت دي او افغان عسکر يې په خورا نا امیدی سره تشه نندارهکوی او په خورا لویدلی او بایللی مورال سره وایي چې : هرڅه چې د وړلو وی دوی يې له ځان سره وړی دا سمیټي دیوالونه ډېر درانه دي کنه دایې هم له ځان سره وړل.

• همدا راز څو ورځې مخکې د فاریاب مرکز میمنې ښار او سیدونکو په مسلسل ډول د چاودنو او انفجاراتو اوازونه اورېدل او خلک هم په تشویش کی وو وروسته معلومه شوه چې چاودنې د امریکایانو په ښېس کې وی او خپل محکم هستوګنځي يې په بمونو ورانول.

• د امریکایانو دې کړنو د کابل ادارې چار واکی له سختې مایوسی سره مخ کړی دی او لاره ورنه ورکه ده چې څه وکړی او کومې خواته لاس واچوی؟ همدغه راز د امریکا د ولسمشرۍ د ټاکنو لپاره کاندید "جوبایډن" د اشرف غني ادارې ته حال ورکړی چې نور "خپلې ښځې او حقوق يې خپله وساتي، موږ پخپلو پسې سرګردانه ګرځو! او زیاته کړې يې ده چې موږ په دې کیسه کې هم نه یو چې راتلونکي کې به طالبان بیا واک ته رسیږي...

• اشرف غني د سولې په لاره کې خنډونه جوړول او دا طمع يې لرله چې ټرمپ خو لاس رانه واخیست ممکن راتلونکي کې که جوبایډن انتخابات وګټل او د امریکا ولسمشر شو نو هغه سره به لاس یو کړو او خپل واک ته به دوام ورکړو. خو جوبایډن يې وار له مخې په امیدونو خاورې ور واړولې او د کابل کاواکه اداره يې له سختې مایوسی سره مخ کړه .

• دامریکایانو خروج او د کابل ادارې دې حالت ته په کتو سره وئیلی شو چې نور هغه ورځ لرې نده چې ان شاء الله العزیز د ګران هیواد د وياړلی تاریخ په تقویم کې د انګریزی او روسی یرغلګرو په څېر د صلیبی یر غلګرو د تیښتې وياړلې ورځ هم ور اضافه ، د زرګونو شهیدانو ارمانونه مو پوره او یو سپیڅلی همه شموله سپین اسلامی نظام حاکم سی ان شاء الله العزیز



# د مخامخ خبرو چارې چا له ځنډ سره مخ کړې؟!

لیکنه: همایون عیسی خېل

د اسلامي امارت او امریکایانو ترمنځ په لومړي ځل په ۲۰۱۸ د اکتوبر دمیاشتې په ۱۲ دولسمه نېټه د سولې خبرې پیل شوې.

له کله چې خبرې پیل شوې د کابل ادارې او د واک مین اشرف غني لخوا ډول، ډول دسیسې او خنډونه جوړ شول.

۱: څو ځله یې ټرمپ ته پټ خطونه واستول او زارۍ یې و کړې چې، مونږ به لګښتونه کم کړو خو ټول سرتېري له افغانستانه مه باسه!

دا لیک د نیویارک ټایمز لخوا رسنیز شو.

عراقي مشرانو د امریکي ځواکونو د وتلو تود هر کلی وکړ، بل لور ته اشرف غني چې ځانته مسلمان وایي، د امریکې ځواکونو پر وتلو یې خپګان ونښود، شاید د افغانانو پر وژلو یې زړه نه وي یخ شوی.

۲: د امریکې سنا مجلس غړو ته یې پټ خطونه واستول چې د خلیلزاد د پیل کړې پروسې سره مخالفت وکړي، ترڅو د سولې بهیر ټکانی او زیانمن کړي.

۳: یو ځل یې د طالبانو دامارت د وخت پخوانی منشور خپور کړ، په دې سره یې موخه دا وه چې نړیوالو او بالخصوص ټرمپ ته طالبان سخت دریزه معرفي کړي او دوی له طالبانو سره پیل کړې خبرې ودروي ...

۴: اخر یې د خلیلزاد د وژلو دسیسه هم جوړه کړه، خو دوی پخپلو شومو اعمالو کې خپل هدف ترلاسه نه کړ.

**له توافقنامې وروسته:**

کله چې د ۲۰۲۰م کال د فرورۍ د میاشتې په ۲۹ نېټه سوله نهایي شوه، د دواړو خواوو یوه لوظنامه امضا شوه، په نړیوال کانفراس کې د تکبیر صدا پورته شوه، د ټول اسلامي امت په ځانګړې ډول د افغان مظلوم ملت په خوله مسکا خپره شوه، یو بل ته یې مبارکیانې ورکولې او مړاوې هیلې یې راژوندۍ شوې... خو دا هر څه د کابل ادارې او د واک مینانو ته د زغملو وړ نه وو.

لوظنامه په ډېرو مادو مشتمله وه ، دا هم پکې لیکل شوي و چې، له مادو پلې کولو وروسته به بین الافغاني مخامخ خبرې پیلېږي، خو په دې کې د طالبانو لپاره سره کرښه دا وه، ترڅو زمونږ ۵۰۰۰۰ بندیان د لېست له مخې خوشې نه شي، د کابل ادارې سره خبرو ته نه کېنو... طالبانو سره دا سره کرښه منلې او امضا شوې هم وه.

خو د کابل ادارې په ډېرې بې شرمۍ سره لومړی د بندیانو د آزادولو څخه انکار وکړ، بیا د خلیلزاد په امر سره د بندیانو د ازادولو لړۍ پیل کړه خو د میږي د تګ په څېر...

افسوس صد افسوس!

اوس اشرف غني د خپلو شخصي ګټو او په څوکۍ د واک غځولو په خاطر نه سوله کوي، نه یې زړه دی چې سوله وکړي، خو برملا انکار هم نه شي کولی، ځکه چې په سوشل میډیا او رسنیو کې ځان د دې وطن بچی او خواخوږی بولي او ځان

سولې ته ترې ښکاره کوي، په دري کې متل دی، وايي: نه انکار مي کنم ونه اين کار مي کنم.

له دې امله اوس کوښښ کوي چې لمر په دوو گوتو پټ کړي، او د ولس په سترگو کې خاورې وشيندي. د خپلې ځوکۍ او مفادو په خاطر د سولې بهير ځنډوي او د دې لپاره ډول، ډول بهانې لټوي.

**کله وايي:**

۱: طالبانو تاوتريخوالی زيات کړی!

۲: طالبان له القاعدې سره اوس هم ژورې اړيکې لري!

۳: کله دملکي تلفاتو پړه پرطالبانو وراچوي!

۴: کله وايي ۵۹۷ بنديان نه آزادوم، ځکه چې دوی په جنايي جرمونو کې لاس لري...

۵:کله د دولتي عسکرو د تلفاتو ارقام په څو چنده زيات خپروي...

٦: کله د ولس په عامو ځايونو لکه روغتون او بازارونو کې چاودنې کوي او پړه يې پر طالبانو اچوي، تر څو خپل بادار امريکې نړيوالو ته وښيي، که تاسو له افغانستان څخه خپل ټول ځواکونه وباسئ! دلته به بيا اور بل شي.

۷ : کله په ډېرې قهريدلې لهجه وايي: ولس تحملي سوله نه غواړي.... متل دی، چې ستا منه په کار ده او که کابل؟ که کابل ته دې زړه کيږي هغه ځانته موضوع ده، او که منه غواړې، نو منه دغه ده، نوشې جان يې کړه!

مونږ افغانانو ته سوله پکار ده هغه، که تحملي وي او که رضايي....

۸: کله داسې راپورونو ته هوا ورکوي چې، گواکې روسانو طالبانو ته د امريکايانو په وژلو جايزې ورکړې دي!

۹: کله راپور خپور کړي چې، د امريکا سره د تړون په ضد د طالبانو نوې ډله جوړه شوې!

خو د دې ټولو پروپاګنډو او تبليغاتو په بدل کې ټرمپ او ناټو هېوادونه همدا يو ځواب تکراروي: (موږ ته له هر څه دخپلو ځواکونو ويستل مهم دي).

**بل لوري ته طالبان:**

۱: همدا ناري وهي، چې بنديان ژر آزاد کړئ، تر څو بين الافغاني خبرو ته لار هواره شي،

۲: کله په نړيوالو غږ کوي چې د لاسليک مادو ته بايد دواړه خواوې ژمن واوسي او ژر پلې شي.

۳: پخپلو عملياتو کې يې ۷۰ سلنه کمښت راوستلی دی.

**خو:**

دا دی د لاسليک نردې ٦ مياشتې پوره کيږي، خو د مقابل له لوري تر اوسه لومړۍ ماده نه ده عملي شوې. که په دې پروسه باندې کار په چټکۍ ترسره شوی وای، شايد اوس بين الافغاني خبرې يوې نتيجې ته رسيدلې وې او يا هم اخرني پړاو ته نږدې شوې وې...

که په ځوکۍ مين اشرف غني ربښتيا هم سولې ته لېواله وي، بايد د بنديانو پروسه زر نهايي کړي.

**د بين الافغاني مذاکراتو ځنډولو پايله:**

په دې شپږ مياشتو کې دواړو لورو او يا بې گناه ولس ته څومره تلفات اوښتي دي، مسؤول يې د کابل اداره ده، همدوی به يې حساب ورکوي.....

**هيله:**

بايد ولس ويښ او ځيرک واوسي، د دښمن په دروغجنو تبليغاتو ونه غوليږي، د دې بدمرغيو علت دولت وګڼي او راپورته شي، له واک تږو څخه وپوښتي چې ولې سوله نه کوئ؟

ولې اور ته لمنه وهئ؟

ولې مو د افغانانو په وژلو زړونه نه يخيږي؟

ولې په بيچاره ملت ترحم نه کوئ؟

ولې له سولې دومره وېره لرئ؟

ولې د ولس سترگو ته خاورې شيندئ؟

ولې په لوی لاس کړې سوله زيانمنوئ؟

پای

د يوې تلپاتې سولې په هيله!



# زه ولې طالب شوم؟

## که اشغال نه وای زه به مسلکي انجنیر او ډاکټر وم

زه هم ځوان وم ما هم هیلې درلودلې !!!

■ لیکوال :شهاب لیوال

جهاد الهي فریضه ده !

په هر مومن او مسلمان فرض کړای شوی!

مخصوصاً په هغه ولس چې، مستقیماً د کفري ځواکونو لخوا حریت آزادۍ او عزت یې یرغمل شوی وي.

ستاسو په آند ! آیا افغانستان اشغال نه دی ! ؟

آیا دلته زمونږ د مظلومو هیوادوالو عزتونه لوټ شوی ندی؟

آیا دلته کفري نظام حاکم نه دی؟

زما په نظر ستاسو ځواب هو دی!

افغانستان څلور لسیزې په تحمیلي جګړو کې ښکیل پاتې شوی، سیاسي مغرضو څیرو د افغان اولس له غیرت او همت نه ناولې ګټه پورته کړې او د جګړې لمن یې غځولې ده .

د نړۍ هر زبرځواک قدرت د دې په لټه کې دی چې زمونږ ستراتیژیک هیواد خپل شومو او استعماري موخو لپاره خپل دایمي اډه وګرځوي، روسانو کوښښ وکړ خو د افغان ولس تند غبرګون سره مخ شول چې، پایله یې د روسي او متحده جماهرو په ماته تمامه شوه.

سیاسي احزابو یاده پرتمینه بریا په سین لاهو کړه او خپل منځي جګړه یې شروع کړه.

د قدرت او مادیاتو په دې خونړۍ جګړه کې، زما دردیلی ولس شهید ، زخمي مهاجر او در په دره شو.

طالب د افغان اولس د نجات فرښته !

کله چې جهادي احزاب له خپل سپیڅلي مسیره بې لارې شول د مدرسې طالب چې په ملا محمد عمر مجاهد (رحمه الله ) مشهور دی لاس په کار شو له کندهار یې یون شروع کړ او د احزابو شومې لومې یې ورټولې او په لنډ وخت کې یې کابل هم فتح کړ، اسلامي نظام حاکم شوو، هغه نظام چې یو میلیون افغان ځوانانو ورته وینه تویه کړې وه.

له جهاده منحرفه ډلې او څیرې غلې پاتې نشوې، له اسلامي امارت نه د غچ او کسات په لټه د اروپا تر پارلمانونو یې سفرونه وکړل، د افغانستان د اشغال او اسلامي نظام د له منځه وړلو لپاره یې د امریکا د وخت حاکم جورج بوش نه د مرستې غوښته وکړه.

امریکا طالب ځواکونو ته ډیر په غوصه وه، هغه زکه چې طالبانو یې سل کلن پلان هغه پلان چې د افغانستان اشغال او له دې ځایه د منځنۍ آسیا باندې دایمي تسلط وه

په سین لاهو کړی و، کله چې د احزابو لخوا یاد وړاندیز ورته وشو امریکایان لاس په کار شول او زمونږ هیواد یې اشغال زمونږ د ولس وینې، عزتونه ،مال او آزادۍ ترننه لوټ او تالان کړه .

زه(شهاب لیوال ) ولې د کابل له چاپیریاله د عصري علومو له ماحوله د ژوندونو له خونده غرونو ته راپورته شوم.

ما نه مدرسه ویلې وه او نه طالب وم نه له هیواده بهر وتلی وم، زما جهاد او د طالب کیدو لامل څه و !

کابل کې د نادریې مشهوره ښونځي نه فارغ شوم په کانکور آزموینه کې دري ادبیاتو ته بریالی شوم، خو لکه څنګه چې په هغه وخت کې زما ورونو شخصي ساخت ساز شرکت درلود له مامشر وروړمې چې اوس هم زمونږ د جهادي چارو مسئول دی( انجنیر خالد غوربندي حفظه الله) تشویق یې کړم چې په شخصي پوهنتون کې د انجنیرۍ په څانګه کې نوم لیکنه وکړم.

کاردان شخصي پوهنتون د کابل کارت پروان سیمه کې خپل فعالیت برمخ وړي ما هم په همدې پوهنتون کې انجنیري شروع کړه.

دوه کاله مې درسونه ویلي وه چې زمونږ پر کور چاپه راغله زما ورورنه د امریکایانو لخوا ونیول شول.

له یو کلن بند وروسته بیا آزاد شول، خو امریکا او لاسپوڅو یې یووار بیا زمونږ پر کور چاپه ووهله دا وار یې زما مور په لغتو ووهله زما د خور له سره یې لوپټه لیرې کړه.

بیا یې زما ورونه له ځانه سره یوړل څلور میاشتې تري تم ول .

کله چې ریاست نود ته ملاقتي ورغلم خپل ورور مې ونه پیژنده، ما ورته حیران کتل چې غبر یې راباندې وکړ ورور مې خبرې کولې او ما ژړل اوښکې نه دریدلې، پوهیږې ولې زکه چې زما ورور یې دومره شکنجه کړی وه چې څهره یې بدله شوې وه.

د بیرته راستنیدو په وخت کې انجنیر خالد راته وویل وایې لیواله که راخلاص نشو کلي ته لاړ شه او د اسلامي امارت له قهرمانو اتلانو سره یوځای شه.

زمونږ د خور او مور غېږ به هرو مرو اخلې!

د کابل له رنګینیو د پروان تر غرونو !

زه هم راغلم له طالبانو سره یوځای شوم الحمدلله ثم الحمدلله چې نن مجاهد یم پوره دولس کاله مې اسلامي امارت ته خدمت کړی او ویاړم چې د داسې نظام غړی یم.

نوی ځوان شوی وم او روزګار مو هم الحمدلله ډیر ښه وه تر څلویښتو زیاد کارګر، موټر او کاربار مو وه.

خو اشغال مې د ځوانۍ په هیلو خاورې وشیندلې !

که اشغال نه وای زه به مسلکي انجنیر او ډاکټر وم د انګلسي ژبې ښونکی وم خو نن مې هرڅه هیر دي.

مونږ د تعلیم خلاف نه یو بلکه هغه تعلیم چې اسلامي او دیني احساسات وژني نه یې منو.

د پرون شازدګی نن په غرونو کې ډبرې ماتوم او خپل روزګار کومه کله کله داسې هم راشي چې میاشتو میاشتو لپاره پیسې نلرم کور کې اولاد مې مریض شي دوا ته یې حیران شم.

زه هم ځوان وم ما هم هیلې درلودلې!

خو اشغال هرڅه رانه واخیستل .

ما له خپل رب متعال سره تعهد کړی ترهغه به جهاد ته دوام ورکوم ترڅو چې اسلامي نظام نوي حاکم شوی.

چې بیا مې افغان بچی له تحصیل، تعلیم او د ځوانۍ له هیلو محرومه نشي .

زه هم ځوان وم ما هم هیلې درلودلې.



# د بندیانو پروسه باید تکمیل شي!

احمد مختار

د اسلامي امارت او طالبانو ترمنځ د سولې تړون له لاسلیکولو څخه تر څه کم پنځو میاشتو تیریدو وروسته هم لا د یاد تړون لومړنۍ ماده د امریکایي جانب د ناغیړي له وجې ځنډیدلې پاتې ده.

د جانبینو ترمنځ د سولې تړون په مندرجاتو کې یوه مهمه ماده پر امریکایي جانب د ۵۰۰۰ هغو طالب بندیانو خلاصول و چې په تیرو ۱۸ کلونو کې د امریکایي ځواکونو لخوا د عملیاتو او شپنیو بریدونو په ترڅ کې نیول شوي دي.

که څه هم چې د کابل رژیم خپل ټول توان په کار واچاو چې د سولې تړون د ناکامي په غرض د بندیانو د خلاصون پروسه شنډه کړي.

مګر امریکایانو له اسلامي امارت سره د خپلې کړې ژمنې له مخې رژیم مجبور کړ چې په متعددو جوپو کې (۴۵۰۰) بندیان له قیده خوشي کړي.

د اسلامي امارت اړوند د (۵۰۰۰) بندیانو آزادول د سولې تړون د عملي کیدو یو تر ټولو بنسټیزګام دی.

ځکه د یاد تړون ټول مندرجات د یوه ځنځیر د حلقاتو حیثیت لري، د ځنځیر که یوه حلقه هم له بلې شکیدلې وي نو د ټول ځنځیر افادیت په نشت حساب وي.

د (۵۰۰۰) بندیانو خلاصون بین الافغاني مذاکراتو ته د ور داخلیدو لومړنۍ دروازه ده او تر څو چې هغه خلاصه نه شي د بین الافغاني مذاکراتو پیل ناشونی دی.

د بین الافغاني مذاکراتو نه پیلیدل په مجموع کې د ټول تړون موثریت تر پوښتنې لاندې راولي او ولسورباندې بې باوره کوي.

لهذا اسلامي امارت پر دې خبره جدي ټینګار لري چې په هرشکل وي باید د (۵۰۰۰) طالب بندیانو پروسه ژر تر ژره نهایي او بین الافغاني مذاکراتو ته لار پرانیستل شي.

اوس پوښتنه دا ده چې د بندیانو د خلاصون په پروسه کې امریکایي جانب ولې ناغیړي کوي؟

دا خو ښکاره خبره ده چې امریکایان د کابل رژیم تر صلاحیت لاندې ساحه کې څه وغواړي هغه تر سره کولای شي.

تر دې واندې هم د ځینو لوړ پوړو طالب بندیانو د خلاصون په اړه رژیم ډیر ټینګ مخالفت درلود، خو داچې امریکایان د هغوی د خلاصون په اړه جدي وو ، هماغه بندیان د رژیم له مخالفت سره سره خلاص شول.

په اوسنۍ مرحله کې هم که واقعا امریکایان د سولې تړون ته ژمن وي باید په دې اړه هم پر کابل رژیم له خپل نفوذ او بالادستي څخه کار واخلي او هغوی مجبور کړي چې پاتي طالب بندیان هم ژر تر ژره آزاد کړي تر څو د سولې تړون بعدي مراحلو ته لاره پرانیستل شي.

# د حسن خان کړنه د ډېرو د درد کړیکه ده!

صارم

په رسنیوکې د بغلان ولایت دیو قومي مشر یوه ویډیوښکته پورته کیږي، ډېر یې ستایي او ځیني بیا نیوکه پرې کوي، هغه چې داعتراض په ډول په یوه غونډه کې د وینا پرمهال خپله لنګۍ پرځمکه ولي او دتن جامې وباسي وایي : نور دلته په دې هیواد کې مسلمان، افغان، باعزته او عام ولسي شخص ته هیڅ عزت پاته نه دی، نو له زغمه یې ووته،" تنګ آمد به جنګ آمد" دیمکراسي، دبیان ازادي! مساوات! ... هرڅه یې ورسره ومنل، خو چې پوه شو نتیجه غصب، وژنې، دحقوقو تلف، داقلیتونو راپارول او تعصب ته لمن وهل دي، نو یې په لویه غونډه کې دتن جامې ووېستې اوخپله لنګۍ یې په ځمکه وویشته ګواکې دعزت نور څه راپاته نه دي او جامې مو وتې دي . دا د داسې چاکړنه اوعمل نه دی چې دحکومت مخالف اوله حکومته دباندې سړی وي یایې برخه کمه او څه مادي غوښتنه کوي، بلکې په اداره کې دننه ښه وسي او تر وکالته رسیدلی سړی دی، خو دحکومت دبې کفایتۍ او په حکومت کې دننه غدر، خیانت، ظلم، رشوت اونه انصاف مجبور کړ چې دخپل زړه بړاس وباسي اوهرڅه په جار سره ووایي په نظام کې دننه دیمکراسي او دبیان آزادي! ورته همدومره لاره پرې ایښې وه چې په دې ډول خپل ډډی تش کړي .

دحسن خان داکړنه به په بېلابېلو اړخونو ارزول کیږي، خو یو څه چې ډېر په واضح ډول ترې ښکاره کیږي داچې اوس په نظام کې د داسې خلکو سلنه زیاته شوې اودحسن خان داکړنه د ډېرو د درد کړیکه ده،دومره ده چې ده خپل حال دخلکو په مخ کې بړالا وواېه او هغوی به یادومره وس نه لري او یابه د موقع په انتظار وي، مونږ وینو چې دې نظام ته ډېر وفاداره اوس ډېر ګیله من دي اوپه حقیقت کې ډېر ورته پاخه هم دي چې په راپرځولو کې به یې له مخالفینو سره له هیڅ راز همکارۍ نه ډډه هم ونه کړي، دوی ټول اوس په یوه خوله دي او وایي چې له مونږ ټولو جامې وتې دخپلواکۍ او افغانیت هیڅ راز عزت او عفت راپاته نه دی، او په بېلابېلو مواقعو او خواله رسنیوکې د زړه غوټې پرانیزي .

شاید د دې خلکو په باب وویل شي چې دوی په قدرت کې وو، نو داهیڅ نه وو او اوس چې له قدرته لرې شوي اویاپرې د ډالرو اوربښت کم شوی، نو ځکه دغه ډول کړنو ته لاس اچوي او بد تبلیغات کوي، مونږ وایو همدا دغوټې سر دی او زمونږ اوستاسو داختلاف او نه جوړښت عمده لامل همدا ټکی دی چې زمونږ کړنه دعقیدې او فکر له مخې ده او ستاسو ټول حساب، هڅې،کاري زیار، جګړه او هرڅه پرمادیاتو او پردي فکر بنا دي، مونږ وایو زمونږ د سعادت او بري لار اسلام او اسلامي اساسات دي، خو تاسو پرته له دې چې مخکې او وروسته ابعاد یې ځان ته معلوم کړئ د دیمکراسۍ په پردي فکر پسې روان یاست، په داسې حال کې چې زمونږ ټولنه او چاپیریال هیڅکله ورته جوړ نه دي اوپه دې خاوره د اسلام لپاره دومره وینې بهیدلې چې څو نسلونه به یې داحسان پوروړي وي .

حسن خان او دحسن خان د فکر لارویوته په کار ده چې تور او سپین سره جلا کړي دلته دحق او باطل لارې معلومې دي، نور دې په دیمکراسۍ نه غولیږي او لکه څنګه چې د دې غولوونکو شعارونو نتیجه اوپای ورته روښانه شول، په واضح او پوره جرئت سره دې عمل وکړي او هغه طرف دې ونیسي چې مدعا یې اسلام او اسلامي نظام پلي کول دي .

# د انګریز قومندان وروستۍ خبره

انګریز قومندان مارټ راډنر د وروستي ځل لپاره خپل بیرغ له باستن کمپ نه را ښکته کړ، څو یې بېرته خپل وطن ته یوسي.

هو چرت به یې وهلی وي که موږ انګریزان بدل شوي نه یو او خپلو نیکونو پخېر مو یوځل بیا د افغانانو په کور یرغل ور وړ نو افغانان هم بدل شوي ندي او هماغه د نیکونو په رسم یې خپل وطن په نره له موږ وګټه.

حتما به یې ویلي وو چې پخوا هم یو څه افغانان؟! زموږ نیکونو څنګ ته ودرېدل او په کاذب ملاتړ یې دوکه شول نو زموږ څنګ ته هم ځیني ودرېدل او په دغه تش ځګ موږ هم خطاوتو او خپلو نیکونو پخېر مات لښکرې مخ په بریټانیا روان یو.

د بیرغ کوزولو پر مهال به یې ذهن کې هغه ورځې لکه د فلم ترخې صحنې مجسم شوې وي چې دوې څرنګ نولس کاله وړاندې دغه کمپ کې په خندا او خوښۍ د ملیارد ډالرو او پونډو پر مټ تاسیسات جوړول. دوی فکر کاوه چې پخوا مو نیکونه افغانانو مات کړل نو دواړو تقریبا ورته وسلې او امکانات په لږ توپیر درلودې او اوس خو افغانان په هیڅ برابر دي نو کم له کمه یوه پیړۍ، څو نسلونه به د میوندي زمرو پر هدیرو د انګلینډ پوځي بیرغ رپانده وي.

خو خبره سر چپه شوه. تېرو شلو کالو کې دا زمکه په پردیو لښکرو داسې سور تنور شوه چې د تېښتې پېل کاناډایي عسکرو وکړ، پسې هالنډ، استرالیا، جرمن او نورو یو په یو ماتې خوړلې لښکرې مات سرونه له افغانستان نه وتې او اوس ورځ راغله چې انګریز او امریکا هم یو په یو خپلې بار بسترې را غونډوي.

یویشتمې پېړۍ کې د افغانانو سرښندونکې مبارزې یو درس بهرنیانو ته دا وو چې افغانان به وسلې او اوچت اقتصاد نلري خو دا وړتیا هر وخت لري چې په وسلو او پیسو سمبال د نړۍ هر وسله وال پوځ نه خپله خاوره وګټي.

بل درس خپلو داخلي افغانانو ته دی. لکه څرنګ چې پخوا د انګریز او روس افغان ملاتړي تاریخ ته کوز ګوري دي نو داسې یې اوسني ملګري هم له مور افغانستان سره خیانت په تور کور ګوري دي.

دا درس باید هر افغان واخلي چې سبا په هیڅ صورت او تر هیڅ عنوان لاندې له هیڅ بهرني سره د خپلو افغانانو خلاف ایتلاف ونکړي.

افغانانو خپلو منځو کې پخوا هم اختلاف درلود او راتلونکي کی به یې هم لري او دا د بشر خاصیت دی، خو هیڅوک حق نلري چې کله پردی لښکرې راشي نو دوی د عقدې او حسد له وجې پردو لښکرو سره اوږه په

اوړه په خپل ښار او کليو کې د خپل افغان په سر او مال تالا ګڼه کړي.

د شهادت په ګوته ځنګه د باطل خبره ولیکم؟

کله چې عمر مختار رحمه الله د ایټالویانو له خوا ځخه اسیر شو؛ قاضی ته یی په محکمه کې د ۲۰ کلن جهاد، او د ایټالویانو پر ضد یی د ټولو هغو سلګونو بریدونو دفاع وکړه چی د ایټالویانو پر ضد یی ترسره کړی وو؛ او په ترخ کښی په زرګونو ایټالوی عسکر وژل شوی وو.

او په ډیر فخر یی په خپل ځان ومنل؛ قاضی ورته وویل: ته خپه نه یې چې اعدام کیږې؟ او ژوند دي ختمیږي؟ عمر ورته وویل: ما همداسی غوښتل چی ژوند می د فخر په مرګ تمام شی

؛ قاضی بیا ورته وویل: خوشي به دي کړو، خو ته هغو خپلو مجاهدینو ته چې اوس هم زمونږ پر ضد جګړه کوي؛ خط ولیکه! چې نور د ایټالویانو په ضد جګړه ودره وی؛ عمر ورته وویل:

زه ځنګه په هغې ګوتي چی پنځه وخت لمانځه کښی په کلمه داشهد ان لااله الا الله وان محمدا عبده ورسوله ګواهی ورکړی؛ باطل او حرام ولیکم؛ نو هماغه وو چی اعدام یی کړ.

تقبله الله وجعل الجنة الفردوس مثواه! ...

أحقر: عبد القوي



# طالب د فکر نوم ده!!

مصلح افغان

طالب د اشخاصو او افرادو نوم نه بلکې د یو فکر او عقیدې نوم ده. اشخاص او افراد په وژلو ختمېدلی شي.خو فکر او عقیده هېڅکله هم نه شي ختمېدلی. د طالب دښمنان دې طالب ته د ښکنځلو په ځای حقیقت درک کړي. او د طالب د ختمولو خوبونه دې نه ویني. دغه فکر او عقیدې نولس کاله د الله تعالی په مرسته د نړۍ له سترو طاقتونو سره په خالي لاس ډغرې ووهلې. هغوی یې له ختمولو عاجز شول. یو وخت به د دې فکر پلویان یواځې طالبان، او ملایان، وو. خو اوس مونږ ګورو چې د هر مسلک با احساسه افغانان د دې فکر او عقیدې په دفاع کې د باطل په وړاندې د مبارزې سپېڅلي ډګر ته راوتلي. دوی پخپله مبارزه دا ثابته کړه چې دغه فکر او عقیده د ملت تر یو ځانګړي قشر پورې محدوده نه ده.

بلکې د هر فن او مسلک هغه باحساسه ځوانان چې اسلام، هېواد او ملت ته صادقانه خدمت خپل مکلفیت بولي. د دې فکر لارویان دي. او په شریکه به دغه مبارزه په مخ بیايي.






## د دعا لپې

م منصور درمان

درته نېولي مو دعذر او ژړا لپې
الله! راډکې کړه لهٔ عفوې او رضا لپې

یوه مثمره نتیجه پرې مرتبه کاندې!
درته ډالۍ کړلې غازیانو دغزا لپې

تاندې سلګۍ او تودې اوښکې بدرګه ورسره
خالي مو مکړې د توبې او د دعا لپې

درحمت ترې، لهٔ عذابه پهٔ لړزه رپېږي
تاته کچکول دي بين الخوف والرجا لپې

غواړي چې وڅښي يو جام دمغفرت لهٔ نوره
درته ولاړې تور مخونه دګناه لپې

دګناهونو لهٔ پنډونو نه پهٔ ملاؤو خم يوو
راکړې توفیق چې کړو نور ډکې لهٔ تقوی لپې

ځيرې ګرېوان لکه ملنګ، غواړي قلنګ الهي!
منصور درمان دي غځولي يو ځل بيا لپې




من از روئیدن خار بر سر دیوار دانستم
که ناکس کس نمی گردد از این بالا نشینی ها

من از افتادن سوسن به روی خاک دانستم
که کس ،ناکس نمی گردد از این افتان و خیزان ها

آهن و فولاد هر دو از یک کوره می آیند برون
آن یک شمشیر بران وان دگر نعل خر است .

شست و شاهد هر دو دعوی بزرگی می کنند
پس چرا انگشت کوچک لایق انگشتر است .

کره اسب از نجابت در تعاقب می رود
کره خر از خریت پیشاپیش مادر است .

کاکل از بالا نشینی رتبه ای پیدا نکرد
زلف از افتادگی همسان مشک و عنبر است .

نا کسی گر از کسی بالا نشیند عیب نیست
روی دریا خس نشیند قعر دریا گوهر است .

دود گر بالا رود کسر شان شعله نیست
جای چشم ابرو نگیرد گرچه او بالاتر است

من از روییدن خار بر سر دیوار فهمیدم
که نا کس!کس نمیگردد از این بالا نشینی ها

(صائب تبریزی)

## مباش

ای دل مرو سوی خطر گر میروی لرزان مباش
از رهزنان غافل مشو از دشمنان ترسان مباش

چون باکسی همراه شدی ازنیمه راه برنگرد
چون ازپی مردان روی دیگر زنامردان مباش

دشمن اگرجانب دهد باأو دم یاری مزن
در دوستی گرجان دهی از دوست روی گردان مباش

همدست ماگر شوی پای کسی دیگر نگیر
بادوست چون پیمان کنی باغیرهم پیمان مباش

قانون به کیش عاشقان درفکرخود بودن خطاست
یا از سروجان درگذر یاعاشق جانان مباش

**#شعر/ نِجات أفغان**

زه دې قلم په ژبه درد راټولوم ده ملت
زخم پرهر یی هر بچي ته ښکاروم ده ملت

سوي آهونه او وړې سلگۍ یې هم ده ارمان
ده ارمان غبرګ یې تر هر چا نن درسوم ده ملت

که یې زخمونو ته ملحم جوړیدی نشمه زه
د سر په بیه مې یو څو زخمه ګنډم ده ملت

یا په ټوپک یا په قلم او یا په توره باندې
د عبرت درس هر یو دښمن ته ورکوم د ملت

ده امن سپین بیرغ به بیاپه لوړو غرونوباندې
هم په درو په لوړو څوکو رپوم ده ملت

تور تم تیارې او تورو شپو زرین لمر به راځي
دغه بدرنګ حالات به نور زه بدلوم د ملت

ځان به قربان کړم ترې(نِجات افغان)وعده درکوم
خو هر یو ټپ ته به پټۍ زه جوړوم ده ملت

# غزل

د هیواد غېرته به د امن سپینې وراوي راځي
چې د یتیم په خولهٔ وړې، وړې دعاوي راځي

دلته به ماتې شي او پرې به یاغي مرۍ شي
که په مادي طاقت سپرې، وحشي بلاوي راځي

هر ځل پړاو د انقلاب لومړۍ خوارۍ زېږوي
او ورپسې د ازادۍ شال کې بریاوي راځي

د شپو څادر به شي رانجهٔ د سباوُن د سترګو
د هر قدم په بدرګه به یې رڼاوي راځي

نفرت به مړ وي او هو مینه به پېغلوټې ښکاري
د بدرنګۍ ځاله به رنګه وي، ښکلاوي راځي

د سپرلي ورېم به ګلونه په ځوانۍ راولي
او په نڅا به ورسره مستي هواوي راځي

د چا له سترګو شفاعته! درونډ ازار راپسې
په ژوندانهٔ چې راته سر په سر سزاوي راځي

## د عزم خاوندان

#حسان_ضعیف

د عزم خاوندان په زولنو کله ماتیږي
محکمه عقیده یې په شکنجوکله ماتیږي
چې تږي وي د مینې زندګي ورته لیلا شي
هدف چې وي رضا په نفرتو کله ماتیږي
زندان پسې غمجن وي ځنځیرونه پسي ژاړي
د عشق قاصدان دي په دردو کله ماتیږي
محبس شي مدرسه ورته مرکز شي د علومو
د علم مشالونه په تیارو کله ماتیږي
قوت یې اخوت دی له عناده څخه پاک دي
ازاد خلک په منځ کې د پردو کله ماتیږي
خلیل غوندې لمبو ته په خندا خندا وردرومي
غلیمه ستا د مکر په لومو کله ماتیږي
حسان ضعیفه تل به بریالي وي هسکه غاړه
سرونه چې ټیټ نه شي په جنګو کله ماتیږي



د هیواد له نامتو جید عالم او لیکوال محترم

# مولوي شمس اللّٰه کمالزاده

## سره د څرک ځانګړې مرکه

مرکه کوونکی: م فرهاد

**درنو لوستونکو! د هیواد له نومیالیو علماء کرامو او مشایخو سره د علمي، جهادي، ټولنیزو او شخصي مسایلو په اړه د مرکو په لړ کې مو دا ځل له وتلي لیکوال، علمي او جهادي شخصیت مولوي شمس اللّٰه کمال زاده صاحب سره مرکه کړې چې لوستلو ته یې تاسو رابولو.**

جناب محترم کمالزاده صاحب! السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

**۱- پوښتنه:** ستاسو شهرت، علمي مقام او جهادي ژوند سره ترډېره حده لوستونکي اشنا دي، خو بیا هم د مرکې د دود او دستور مطابق، که لطف وکړئ او د څرک مجلې لوستونکو ته ځان پخپله معرفي کړئ؛ مهرباني به مو وي.؟

کمال زاده صاحب: الحمد لأهله والصلاة على أهلها وبعد :

**د فرهنګي کمېسیون درنو کارکوونکو او د «څرک» مجلې محترم چلونکی او لیکوالو ورونو!**

ستاسو له پیرزوینې ډېره مننه کوم چې له ما څخه مو د لویو خلکو په کتارکې د مرکې غوښتنه کړې، که څه هم زه خو ځان هغومره وړ او لوړ نه وینم، دغه ستاسو نیک ګومان دی.

الله تعالی مو دې ستاسو له حسن ظن سره سم کړي او تاسی ته دې له خپله درباره په دغه باور او پیرزوینه زیات اجرونه درکړي.

**محترمو!** زما مختصر تعارف په دې ډول دی: زه د غزنی ولایت اندړو ولسوالی د شلګر سیمي کنصف د کلي اوسیدونکی او لومړنۍ زدکړې مې د ملا مشک عالم په ابتدایي ښوونځي کې ترسره کړې، وروسته په ۱۳۴۶ لمریز هجری کال کې د نورالمدارس فاروقیه مدرسې درېیم ټولګي ته شامل شوم.

**۲- پوښتنه:** د خپلو زده کړو په باب که لږ نوره رڼا هم واچوئ، یوازې دیني زدکړې مو کړې او که عصري هغه هم لرئ، او مروجه دودیز فنون مو چیرته لوستي، په ځانګړې توګه لوړې زده کړې (وړې او لویې دورې) مو چیرته او له کومو استادانو سره کړې؟

**کمالزاده صاحب:** لوړې زده کړې مې هلته په نور المدارس کې سرته رسولې دي، هلته وړه دوره تر دولسم ټولګي پورې او درې کاله بیا د کلیې دورې په نامه لویه دوره لوستل کیده چې ما له دوو ارتقایي ازموینو تیرولو وروسته په ۱۳۵۶ لمریز هجری کال په بریالیتوب سره

دواړه دورې سرته ورسولي او د فراغت سند مي ترلاسه کړ او په همدغه کال پسرلي کې مي د عسکري خدمت د امتحان او ازمویني دوره هم طي کړه او ترخیص مي واخیست.

هلته په نور المدارس کې د وخت نامتو، وتلي، اوڅار او مهربانه استاذانو لکه د لاغرو اخندزاده صاحب، صدرالمدرسین سیدعبدالمنان د دوکوهی مولوی صاحب مولوي عبدالغفور د کندر مولوي صاحب مولوی عمرخان د سلیمانزو حاجي صاحب د قبرغې اخند زاده صاحب د رستم ملا صاحب د میانجو مولوی صاحب او د فنا خلیفه صاحب رحمهم الله تعالی رحمة واسعة او نورو مبارکو برجسته علمای کرامو چې تر نامه یي خلک له هستوګنځې سره ډیر آشناوو او د کُلی په نامه به پیژندل کیدو خلکو یي نوم اخیستل هم نامناسبه بلل دغسی سپین روبوعالمانو تدریسی چارې پرمخ وړلي هر یو یي دعلم څپاند سمندر او د سپیڅلي عمل اوچت منار وو.

**مرت سنون بالسعود وبالهناء**
**فكأنها من قصرها أيام**
**ثم انثنت أيـام هجر بعـدها**
**فكأنها من طولها أعوام**
**ثم انقضت تلك السنون وأهلها**
**فكأنهـا وكأنهم أحـلام**

د خوښۍ او نیکمرغۍ کلونه وو داسې تېر شول لکه له لنډوالي چې ورځې وي بیا د خواشینۍ او بیلتون شپې او ورځې راغبرګې شوي، ته به وایې له اوږدوالي کلونه دي بیا دا کلونه او خلک یې داسې تیر او هیر شول لکه چې د خیال خوبونه وو.

**٣- پوښتنه:** د خپل تدریسي او تأليفي بوختیا په هکله که معلومات راکړئ او دا راته ووایاست چې د یوه فارغ عالم لپاره تدریس او تألیف څومره اړین دی، او ستاسې له انده یو مدرس عالم باید کومې ځانګړتیاوې ولري؟ همدارنګه طالب العلمانو ته مو توصیه څه ده؟

**کمالزاده صاحب:** ما د زدکړې په وخت کې لا هم له مطبوعاتو سره یو څه قلمي همکاري لرله او په ظاهرشاهې دورکې مي د ندای حق جریدې په اداره کې د ژمي د رخصتۍ په وخت کې او بیا څه نوره موده هم خدمت وکړ هغه مهال په هیواد کې کمونستانو د دموکراسی په برکت فعالیتونه پیل کړی وو او ځینو دین دوستو مسلمانانو یې د مخنیوي هڅې کولي، ندای حق جریده هم د خدام الفرقان عالي جمعیت غبږ وو چې د کمونستي افکارو سره یی مبارزه کوله، بلـه د ګهیځ جریده وه چې د وخت بې دینانو سره یي په فکري سنګر کې کلکه مقابله روانه وه، هلته د ندای حق په اداره کې زما محترمو استاذانو هر یو مرحوم مولوي عبدالستارصدیقي او مرحوم محترم مولوي رحیم الله زرمتي صاحب چې لومړی د جریدې د امتیاز خاوند او دوهم مسئول چلونکي وو؛ دوی په ډیره مهرباني زما لارښونه کوله او ما کله ناکله د خیبر، ګهیځ، اتحاد ملي او سنایي جریدو ته مقالې ور استولي، له فراغت څخه څو میاشتې وروسته د ثور کرغیړنه کودتا وشوه او زه هغه وخت د عمرې په سفر سعودي عربستان کې وم وروسته کویټ ته ولاړم او دا هغه وخت و چې د مجاهدینو ګرد تنظیمونه د حرکت اسلامي تر بیرغ لاندي راټول شوي وو ما یي هم ملګرتیا وکړه.

او چې تاسو پوښتنه کړي، د یو عالم لپاره تدریس او تألیف څومره اړین دي، زما په آند دغه له هغو دریو څیزونو څخه یو دي کوم چې وروسته له مړینې سړي ته په ښمر (ګټه) ورځي چې رسول الله فرمايي : (اذا مات الانسان انقطع عنه عمله الا من ثلاث: علم ينتفع به او....) دغه تلپاتي ګټه ده او لکه چې وایي : قدمات قوم وهم فی الناس أحياء .

دغه د سړي د نوم ژوندي پاتي کیدلو سبب هم ګرځي نو د فراغت څخه وروسته یواځي په امامت بسنه

کول په کار نه ده او د دین د خدمت لپاره د تدریس تألیف او تبلیغ رسالت ته اوړه ورکول ضروری دي .

او د طالب العلمانو لپاره ښه توصیه دا ګڼم چې خپل وخت بیځایه ضائع نه کړي او د ژوند له هرې شیبې څخه ګټه پورته کړي هغه کتابونه ډیر ولولي چې د وخت ارزښت یې ښودلی، بیا به نو خپل وخت په فیس بوک، واتساپ، مسینجر او... نه وژنی، له عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت شوی، هغه وایي، زه په هیڅ شي دومره پښیمانه شوی نه یم لکه په دې چې ورځ مې تیره شي خو په عمل کې مې زیاتوالی نه وي راغلي .

**۴- پوښتنه:** ګاونډي هیواد پاکستان ته مو په کوم کال هجرت وکړ او چیرته مو استوګنه غوره کړه او د هجرت له دیار څخه مو څنګه خپل علمي، فرهنګي او جهادي سفر پیل کړ؟ تنظیمي اړیکي، او بیا له امارت سره مو ملګرتیا کله وشوه؟

**کمالزاده صاحب:** په ۱۹۸۰ میلادي کال کې پاکستان ته را مهاجرشوم لکه چې ومې ویل له حرکت انقلاب اسلامي سره مي د وفاداری عهد وو په لومړي پیل کي مي ورکوټی کتاب (د مجاهد لوړه) چاپ شوه په حرکت کې مي په مختلفو عهدو خدمت کاوو.

په جنوب غرب حوزه کې کله د سیاسی دفتر او کله د فرهنګي غړیتوب یا مشرتوب را په غاړه وو او چې کله حرکت وویشل شو، زه د محترم شهید مولوی نصرالله منصورصاحب له ملګرو څخه وم .

نیمه خوا ژوند هلته نور بی خونده شو چې هیلي مو په ناهیلۍ واوښتي او د اسلامي انقلاب له بري سره جوخت هیواد ته ګردېشي راغله هره ترخه یو باچا پیدا شو او بیا څه وخت وروسته د طالبانو اسلامی تحریک را وټوکیدو موږ هم په هجرت کې په یوه لېسه کې د تدریس دنده لرله او بیا مو د څو نورو ملګرو سره، لکه محترم مولوي جان محمد مدني، مرحوم مولوی محمد افغانی او مولوي محمد کریم مسعود او... سره یو ځای له امارت څخه ملاتړ وکړ او د مولوي مدنی صاحب په ابتکار او مشرتوب مو د البدر د جریدی د خپرولو تاداو کېښود وروسته مو د (الطالب) میاشتنۍ مجلې شل ګڼې خپرې کړي او بیا زه په ۱۴۱۸ هجری قمری کې د سعودي عربستان له خوا د افغانستان په ونډه کي د حج د مراسمو پوښښ لپاره د هغوی د (وزارت اعلام) مېلمه شوم او د عرفات له سپېځلې غونډۍ نه مې خپل پېغام دګران هیواد افغانستان په نمایندګي په دریو ژبو: عربی، پښتو او دري باندي عالم اسلام ته ورساوو، بیا څه موده وروسته ما او مدنی صاحب ته په عربي متحده اماراتو کې د ډیپلوماسی دنده راکول شوه او له محترم ورور حافظ عزیز الرحمن صاحب سره یو ځای موهغه هم د الله په مرسته په بریالیتوب سر ته ورسوله. څو چې پرهیواد امریکایي یرغل وشو او موږ ټول په ډیرو کړاوونو واوښتو په دغه موده کې ما د ځینو کتابونو ژباړل غوره وبلل او (الایمان والزنزانة المتجولة) چې ما یي نوم ایمان او ګرځنده ځېلخانه غوره کړ؛ وژباړل دغه کیسه د حضرت کعب ابن مالک رضی الله عنه هغه د تبوک له غزا څخه د ده وروسته پاتي کېدل بیانوي چي بیا وروسته هغه پخپله او د ده نور یاران او ملګري هر یو (هلا ل بن امیة رضی الله عنه) او ( مرارة بن ربیع رضی الله عنه ) په داسي ګرځنده ځېلخانه کي بندیان شول چي تاریخ یې هېڅ مثال نه دی خوندي کړی او دوی بیا په شپو، شپو د پښېمانۍ اوښکې واورولې، ځکه نو زه ورته کله د پښېمانۍ اوښکي هم وایم او مؤلف وربانديي ایمان او ګرځنده ځېلخانه نوم ایښی دی .

هو هغوی په دغه ټاکلي پنځوس ورځو کي په داسي اخلاقي مدرسه کي وروزل شول چي نور یې د پاتي ژوند په اوږدو کي له ګناهونو څخه وژغورل ... هغوی خپل مالونه او شته چي د دوی د پاتي کېدلو لامل و؛ د الله جل جلاله په لارکي ځار کړل او لکه څرنګه چي دوی په

رښتيا ويلو نجات مونـدلی وو نـو تـل ترتلـه بـه يـې رښـتيا ويل.

بيا مـي (دشـيخ پندونـه) هغـه کېښـه چـې د يسـاربن صادق بغدادي وه او هغه داسي ستانه سـړی ؤ چـي پخپـل نفس او هوا يي بری موندلی ؤ.

هغه پـه پرهيزګـاري مشـهور او د اللـه جـل جلالـه پـه طاعت کښي را لوي شوی ؤ او د ده همزولو به ورته راهب وايـو. چاوچـا بيـا ورتـه د مسـجد کـوتره نـوم ورکـړي ؤ، خودهغوی په ژوندکښي يوځل داسي بدلون راغي چي ټول ساري اوملګري"همزولي" يي هک پک حيـران کـړل. هغـه داخـروي ژونـد څخـه دنيـاوي ژونـدغوره کړ،لـه ګټـوري سوداګري اوتجـارت څخـه يـي زيـانمن تجـارت پيـل کـړ، دسپين روبوپوهانو او بزرګانو لاره يي دچورلنډو فساقو پـه کوڅه بدله کړه ...

سبحان الله ثم سبحان الله، څرنګه د خلکوطبيعتونه اوړي را اړوي او بيـا څنګـه د ايمـان ډيـوه د چـا او چـا پـه سـينه کښـي مـړ ژوانـدي کيـږي. محمـد بـن اسـحاق وايـي زمـادي قسـم وي چـي هغـه لا تنکـی ځـوان وو خـو دپخوانيوپوهانو کتابونه يي لوسـتي او دعلـم او ديـن څخـه يـي بشـپړه برخـه ترلاسـه کـړي وه. هغـه دحسـن بصـري اومالـک بـن دينار،طـاووس اوحبيـب عجمـي رحمـة اللـه عليهم په پله پـل ايښـي ؤ اودابـو حامـدغزالي کتابونـه يـي لوسـتي ووهغـه بـه ويـل څـوک چـه احيـاء (داحيـاء العلوم کتاب چي امام غزالي ليکلی دی) ونه وايي له احياؤ څخـه نه ګڼل کيږي .

دهغه يوملګري به ويل: يسار به پـه ورسـتنيوکښـي دومره پرهيزګاره وي لکه چه عبدالرحمن قـس پـه لومړنيـو پيړيـوکي تيـر شـوي دی. هغـه پـټ خـولی او لږغږيـدونکي ؤچه خبري به يي کولي ډيري ورو او په کرارېه غږيـدو خـو خبرويـي زړونـو تـه لاره موندلـه .دده پـه خبروکښـي خونداوپوستوالي ؤ داسي ځانګړي سحري ښه يـي درلـوده چي اوريدونکي يي په منلو پړؤ ،په دي به نـه پوهيـدو چـي

دخبرومين اوکه دخبري کوونکي ليوال دی دا کيسـه ديسـار غونډي پاک زړي سپيڅلي انسـان ده چـې يوځـل يـي ښـه وښوئيده خوبيا دشيخ پنـدونو بيرتـه پـه لارکـړ ډيـره پـه زړه پوري ده .

او وروسـته (ممـو زيـن) هغـه د سـپيڅلي مينـې کيسـه چې؛ په ځمکه کښې زرغونه او په آسـمان کښـی پخـه شـوه. له عبرته ډکه کيسه چـې زمـوږ د يـو محتـرم مشـر مرحـوم مولوی اعظم ګل صاحب ډيره خوښه شوي وه بيا د(تـوبې ځلي) هغـه حـديث شـريف چـې دپخوانيـو امتونـو ديـوتن کيسه کوي چي يوڅوک نه نوي (۹۹) تنه وژلی بيا سلم تن هم ديو زاهد په وژلو پوره کړي او وروسته الله تعـالی ورتـه دتوبې توفيق ورکوی او ښښل کيږی ددې حديث شريف پـه اتکـاء ديـوې کېسـې سـيناريو چـې داوود سـليمان العبيـدی ليکلی او ډيـره پـه زړه پـوري ده وژباړلـه بيـا مـې د(رسـالة العلماء) تر عنوان لاندی دځينو علماوو کارنـامي لـه عربـي منابعو راټولي کړي او پرله پسی به په( الصمود) مجله کې خپريدلي بيامو دنورو ملګرو لکه محترم مولوي شـهيدخيل محترم مولوي مدني محترم مولوی فريدمحمود او اروابناد محترم انجنير عبـد اللـه ګـل ريـان سـره پـه ګـډه د کليـوالی مدرسـو دري کلـن نصـاب تـدوين کـړ چـې دوه دری کالـه کيږی په غټ تيراژ چـاپ او توزيـع کيـږي او خلکوتـه ښـه منلی دي او وروسته ما د(صفوة التفاسير) ژباړه وکړه چې دغه ليکنی ټولي د الله حمد دی تر لوستونکو ورسيدي .

د (صفوة التفاسير) ترجمې ته مي له ډيـرو سـتونزو سره سره اوږه ورکړه شـپې اوورځـي څـه چـې کلونـه کلونـه مي د هغې په ليکلو تصحيح اوسـمولو کـی تيـر کـړل چـا وچا چې به يی دبشپړيدلو راڅخه پوښتل ما بـه پـه ځـواب کی ورته ويل چې ژوند خوهسی هم تيريږي ښه داده چـی ډيره برخه يی په داسی نيک کـار کـی لکـه دتفسـير ژبـاړل ولګول شی .

ماپخوا هـم دسـپين روبـو پوهـانو لسګونې ليکنې اوګڼ شميرکتابونه ژباړلې وو اودا ځل مي دغه سـتر کارتـه

دالله جل جلاله په مرسته ملا وتړله تر څوکه الله تـه ومنـل شو اوزما لپاره يي  دآخرت توښه کړ، شـيخ الهنـد محمـود الحسن رحمه الله ليکي چي شاه عبد القادر رحمه الله کلـه چي دقرآنکريم ترجمه موضح القر آن ليکله نو دغه فارسـي بيت به يي  په لږ تغييرکولو سره داسي وايو :

**روز محشر هر کسـي با خويش دارد نامهٔ**
**من نيز حاضر ميشوم تفسير قرآن در بغل!**

او زما هم دغه توقع ده چي الله جل جلاله مي دقرآن کريم له خدمت کونکو وګڼي الـله جـل جلالـه ډېـر مهربانـه دی زه يي په خپلو ډېرو هيلو کی بريالی کـړی يـم ، مـاچی نسبتا يوڅه ښکلی ليک ليکلای شو زياته مينه مـی درلـوده چي قرآن کريم پخپل لاس اوقلم وليکم خو چـی دکمپيـوتر دور را دبره شـو دلاس ليکـل يـی تـر خپلـو وړانګـو لانـدی کړل خو زه  ددې تفسير د ژباړلو پـه تـرڅ کـی هغې هيلـی ته هم ورسيدم او قرآن کريم می ټول ددې تفسير ليکلـو پـه وخـت کـی پـه لاس وليکـل مـا  لـه بشـري تـوان سـره زيـار ايسـتلی چـې ښـه لـه خونـد اومعنـی ډکـه پيمانـه ژبـاړه دلوستونکو مخ ته کيـږدم چی لـه هـرډول غلطيـو خونـدي اوژغـورلی وي خـو دغـه دژونـد مقطـع دخواشـېنيو غمونـو اولالهانديو تـوره دوره وه کـه راڅخـه کومـه کوتـاهي شـوي وي  مه مې ملامتوئ  .

په دغه موده کې مي په بلوچستان جامعة المعارف مدرسه کې د ادب او احاديثو ځيني کتابونـه هـم تدريسـول اوبيا دوه دري کاله دلويې دورې څخـه السـنن لابـن ماجـة والسـنن للنسـائي او موطـاءان دتـدريس لپـاره راوسـپارل شول.

**۵- پوښتنه:** د طالـب العلمـانو لپـاره مـو د ليکـوالۍ، املاء، انشاء او غيـر درسـي مطـالعې پـه اړه سپارښـتني څـه دي؟ تاسو په نورو کومو ژبو ليک لوست او خبـري کـولای شئ، همدارنګه د نورو ژبو زدکړه د شاګردانو لپاره څـومره مهمه ګڼئ؟

**کمالزاده صاحب:** طالبعلمانو ته مې سپارښـتنه داده چې د ليکوالۍ لپـاره ژوره مطالعـه وکـړي نـوی مونـدني لـه ځانه سره په ليکلي بڼه ياداشت کړي څکه چې (العلم صيد والکتابة قيد) خپـل ليکلـي مضـمون څوځلـه مسـوده او بيـا پاک نويس وليکې هرځل پکې نوي ټکي زيات او کم کړي ادبـي ليکنـی او د بلاغـت کتابونـه ډېـر وګـوري د امـلاء او انشاء ښه کيدلو لپاره د مجلو او جريـدو ډېـر لوسـتل اړيـن دي، زه په دري ژبو او لغتونـو لکـه پښـتو فارسـی او عربـي بلد يم اردو لغت تر ډېره حده راته آسان دی اوشاګردانو ته د نورو ژبو زده کول ډېر ضـروری بـولم څکـه د دوي د زده کړولپاره د دوي د درسي کتابونو شروح پـه نـورو ژبـو کـي ډېر پيدا کيـږي او د لوسـت پـه وخـت کـې ورسـره پريمانـه مرسته کوي .

**٦- پوښتنه:** د وروستۍ پوښتني پـه توګـه، د څـرک مجلې ادارې او مجموعاً فرهنګي کميسون ته مو پيغام څـه دی، رسنيز خدمات يې څنګه ارزوئ، او د لا پرمختګ پـه اړه څه وړانديزونه ورته لرئ؟

**کمالزاده صاحب:** د فرهنګـی کميسـيون او د څـرک مجلې کارکونکو ملګرو خدمتونـه بيشـکه د سـتايني وړ دي دوی په ملګرتيا کې هم ربښتوني او خورا اخلاصمن دي مـا چې ورسره ملګرتيا کړي، واقعاً ځيني ممنون يم د نومـوړي کمېسـيون پـه بريـا دښـمن هـم باربـار اعتـراف کـړی او د امارت اسلامي دوه وتلي کميسيونونه چې يو يي نظـامي او بل فرهنګي دي؛ د امارت د برياليتوب سببونه دي .

په پاي کې ټولو هغو ورونوتـه چـې پـه دې سرنوشـت جوړونکي مرحلـه کې پـه هـره برخـه  کـې شـپه او ورځ پـه خدمت کولو بوخت دي؛ لـه اللـه تعـالی څخـه غـواړم چـې توفيق يي رفيق کړي.

أقـول قـولي هـذا واسـتغفرالله لـي ولکـم ولسـائر المؤمنين اللهم انصرالاسلام والمسلمين اللهم ارزقنـا علمـا




نافعا وعملا مقبولا و دعاءا مستجابا إنك على كل شئ قدير وبالاجابة جدير آمين ...

د محترم کمال زاده صاحب ځيني چاپ شوي او ناچاپ آثار او ژباړې:

۱. د صفوة التفاسير پښتو ژباړه، چاپ شوی .

۲. د مجاهد لوړه د کيسې په اسلوبو ورکوټې ليکنه.

۳. د مذهب سالار امام ابوحنيفه (ورکوټې رساله)، چاپ شوې.

٤. د شهيد ارمان د کېسو په قالب کې (ورکوټې ليکنه).

۵. د توبې څلی د (جبل التوبة) پښتو ژباړه.

٦. څلوېښت مبارک حديثونه او د راويانو ژوند ليک يې چاپ ته تيار.

۷. (يادي از راد مردان) د سپين روبو د ژوند ځيني انځورونه.

۸) ماذا يجرى وراء اسوار المعتقلات) له پښتو څخه عربي ته ژباړه.

۹. حديث الشيخ (د شيخ پندونه) پښتو ژباړه.

۱۰. ايمان او ګرځنده ځيلخانه د (الايمان والزنزانة المتجولة) پښتو ژباړه.

۱۱. (ممورين) دهغي مينې کيسه چې په ځمکه کې زرغونه او په آسمان کې پخه شوه ژباړه.

۱۲. په اسلام کې اوبه او روغتيا د ازهر پوهنتون پخواني رئيس دوکتور عبدالفتاح الحسيني الشيخ د ليکنې ژباړه چې د افغانستان لپاره د نړيوالې روغتيايي پروګرام اداري له خوا پنځه زره ټوکه چاپ او وويشل شوه .

۱۳. د ادب په پلوشو کې د ګلورينو کېسو غونډه څلور کېسې په يوه غونډه کې .

۱٤. په ادبي هار کې نبوي ملغلري، د الصابونی رح د" من کنوز السنة " شرح چاپ ته تيار.

۱۵. په اسلام کي نکاح او زموږ د ټولني نيمه خوا رواجونه. چاپ ته تيار.

۱٦. (صورمن حياة العلماء العاملين) را ټولونه چاپ ته تيار.

۱۷ د مرګ او ژوند په پوله خاطرې چاپ ته تيار

۱۸ د تعليم خط کتاب ګوټی چاپ .

۱۹ (ابتسم من فضلک) د نکتو، لطيفو، فکاهياتو او د علماوو شاعرانو او اديبانو د طرائفو مجموعه چې له عربی منابعو را ټوله شوې او ترتيب ده، خوندوره په دې چې په دغسي غمجنو حالاتو کي هم سړي په نری موسکا او تبسم نازوي چاپ ته تيار.

يادونه: چاپ ته تيار ټول کتابونه که هرڅوک چاپولای شي، زه يي په يو کوچنی شرط ورسپارم ان شاءالله. والله ولي التوفيق .





■ لیکنه: موسی فرهاد

# ارګ، مُحب او قمرګله يې...!!

په تېرو دوو اونیو کې قریباً د افغانستان په لراو بر کې څو خونړۍ، دردوونکې، جالبي، دروغجنې او هیښوونکې پیښې رامنځ ته شوې.

١ - لومړۍ خونړۍ پیښه د هلمند په سنګین ولسوالۍ کې د مالدارو کلیوالو پر ګنجمیله د اردو لخوا د هاوانونو ویشتل وو، چې له امله يې پراخه ولسي مرګ ژوبله رامنځ ته کړه، نژدې ۵۰ تنه ملکي کسان يې شهیدان او ټپیان کړل. تر هغه وړاندې د جولای پر۱۹مه په بلخ کې د کابل الوتکو پنځه ښځې او ماشومان له ژونده محروم کړل. ورپسې يې په ډنډې غورۍ کې ۷ تنه د یوه کور غړي د ښځو او ماشومانو په ګډون شهیدان کړل، وړمه ورځ بیا د جولای پر ۲۳مه په هرات کې د دولتي الوتکو د بمبار په نتیجه کې دوې وحشیانه پیښې رامنځ ته شوې، اول په ادرسکن کې له بګرام نه د راخلاص شوي بندي پر استقبال کوونکو کلیوالو او بیا هغه ته څېرمه پر یوه واده بمبار کې څه دپاسه ۸۰ تنو ملکي وګړو ته مرګ ژوبله واوښته.

٢ – دویمه دردوونکې کیسه دا وه،،، په داسي حال کې چې د کابل اداري د ملي امنیت د کورني بلیک واټر د قطعاتو له لوري په هیواد کې ځای، ځای بمباري، چاپې او توغندیز عملیات روان وو؛ د هیواد په ختیځ کونړ کې د ګاونډي هیواد پاکستان له لوري پر ولسي خلکو ګڼ شمېر توغندیز بریدونه راپیل وو چې یو شمېر ملکي خلک پکې قرباني شول.

٣ – دریمه جالبه پیښه، څه موده وړاندې د یو سیاسي رشوتي توافق په نتیجه کې د هیواد ترټولو وتلي جنګي جنایتکار، جنګسالار رشید دوستم ته د ارګ غني لخوا د مارشالۍ مصنوعي رینک ورکول شو، دغه کار په کور دننه، یعني د غني پخپل ټیم کې هم ځینې خلک د هغه پرضد را وپاریدل، د غني د کمپاین ترټولو کلک ملاتړی د بغلان د خلکو استاځی ملک حسن خان احمدزی، د خپلو خلکو د مظلومیت او ظالم ته د مارشالي ورکولو پرضد د یوې غونډې پرمهال د ستیج پرسر خپلي جامې وایستلي، او خپل احتجاج يې د رسنیو په وړاندي ریکارډ کړ.

۴ – څلورمه دروغجنه پیښه، د غور د یوې انجلۍ ډرامه وه چې ارګ میشتې او نور دولتي چارواکو يې په ناخبرۍ کې دروغجن کیوریج ته لاس واچاوه چې ګویا قمرګلي په ټوپک پر طالب مجاهدینو ډزي کړې او دوه تنه يې شهیدان کړي. له همدې امله چارواکو هغه په الوتکو کې اخوا دیخوا وځغلوله او میډیایي ډرامې ته یې وړاندي کړه.. خو څرنګه چې مجاهدینو له وړاندي لا دا آوازه رد کړې وه؛ امریکایي ورځپاڼې يې د حقیقت موندني په خاطر سیمې ته خبریالان ولیږل، هغوی حقیقت رابرسیره کړ، چې د چارواکو خبره يې رډ بډ دروغ ثابته کړه. انجلۍ وویل: هغې خپل میړه او د میړه انډیوال د پخوانۍ کورنۍ شخړې له امله وژلي، مطلب دا چې

له طالبانو سره د جګړې او یا د طالبانو د ویشتلو خبره یې مطلق دروغ ثابته شوه .

۵ – پنځمه هینښوونکې پیښنه د غني د ملي امنیت د مشاور حمدالله محب، هغه څرګندوني وي، چې ویلي یې: د افغان امنیتي او دفاعي ځواکونو جګړه د بهرنیانو لپاره نه بلکې د دغه هېواد له نوامیسو ځمکنۍ بشپړتیا څخه دفاع لپاره کېږي. په داسي حال کې چې د ده خپل مشرـاشرف غني احمدزي په ځلونو ځلونو ویلي چې ځواکونه یې د واشنګټن او نیویارک د امنیت لپاره جنګیږي، غني خپلو عسکرو ته وایي ستاسو له برکته په واشنګټن او نیویارک کې چاودني نه دي شوې.

محب په ننګرهار کې د یو لوړ پوړي دولتي چارواکي په توګه د افغانستان د علماؤو په نامه غړ وکړ، ویې ویل: علماء که غواړي چې امنیت یې وساتل شي، او له حکومته د ځان ساتني مطالبه کوي، نو د ده په خبره ملایان دې اول د امنیتي او دفاعي ځواکونو مذهبي ملاتړ وکړي، ګویا ملایان دې د کابل اداري د عسکرو دنده روا او جایزه وګڼي، او ملاتړ دې یې وکړي.

وروسته یې پرخپلو ځواکونو هم غږ وکړ چې په هر ډول چې کېږي د طالبانو په وړاندې خپلې مقابلې ته لا قوت ورکړي. د طالبانو په وړاندي د جګړې د تیزولو غوښتنه یې په داسي مهال وکړه، چې خپله کونړ ته د پاکستان د توغندیزو بریدونو د جواب لپاره تللی. خو د پاکستان په وړاندي یې خوله چوله نکړه، بلکې د طالبانو په مقابل کې یې د جګړې قوي کولو اعلانونه وکړل.

له پورتنیو پنځو واړو پیښنو نه څو ټکي را څرګند شول:

• له لومړۍ پیښنې نه دا مالومه شوه چې د کابل اداري له لوري د افغان ولس داسي بې دریغه او په بې پروایي سره بمبارول؛ ثابتوي چې دا رژیم پخپله هم په دې باور دی چې په دې ولس کې ریښنه نلري، د پردیو ګوډاګی دی، او په وړاندي یې جهاد تنها د طالب نه، بلکې د ولس سراسري مقاومت بولي. ځکه یې بې توپیره د د دې ولس قتل عام ته ملاتړلې ده. څوک چې ځان د دې ولس واکمن او ولس د ځان رعیت وګڼي؛ هغه هیڅکله داسي برملا دښمنۍ ته لاس نه اچوي.

• له دویمې پیښنې نه دا شی ثابت شو چې د کابل اداري د پاکستان ضد پالیسي خبري هسي یو ډرامه ده، د اغزن تار پرسر ورسره معامله کول، د طورخم دروازه رسماً ورسره پرانیستل، د عامو افغانانو په وړاندي پاکستان ته د تګ راتګ په لاره کې ستونزي قصداً اضافه کول، او بالآخره پر کونړ او ننګرهار د پاکستاني توغندیزو بریدونو ته دا ډول غبرګون ښودل، لکه د کابل د چارواکو خصوصاً کونړ کې د حمدالله محب غبرګون؛ ثابتوي چې د وطن پلورني په لاره کې دا رژیم په هیڅ هم صرفه نه کوي. پاکستان ضد میډیایي خبري یې مطلق دروغ دي.

• له دریمي پیښنې نه دا خبره ثابته شوه چې د ارګ چارواکي له یوې خوا ځان د پښتون تېر استاځي معرفي کوي، او په همدې خاطر یې په هیواد کې ژبني، قومي او سمتي مسائلو را اوچتولو ته خورا زور ورکړی، د ژبني او قومي تعصب توپیرونه چې د غني په دې څو کلنه دوره کې زیات شوي؛ په بل هیڅ وخت کې یې ساری نشته، خو له دې سره سره یې له عبدالله عبدالله سره د توافق په سلسله کې تراوسه پوري یوازې دوستم ته د مارشالۍ کار ترسره کړ، هغه څه چې ټول افغان ولس، په خاصه توګه پښتانه یې پخپل زړه کې د خنجر وهلو په مانا ګڼي. نو متپکرغني هم ځان د نړیوالو بشري حقوقو مدافع بولي، هم ځان د پښتنو نماینده بولي او له نورو اقوامو سره یې کرکې ته وده ورکوي، خو له بلې خوا د بشریت

او پښتنو پرضد هم داسي اقدامات کوي، چې له بشري دعواوو او پښتنو سره هم ښکاره دوښمني ګڼله کيږي. او دا په مجموع کې د افغان ولس ترمنځ د کرکي او نفرتونو زيږولو يوه لويه برنامه ده چې پردي يې د غني او د هغه د ټيم غونډي کرکټرانو په مټ دلته پلي کوي.

- له څلورمي پيښې نه دا ټکی واضح شو چې د کابل اداره څومره د پستۍ او کم ظرفۍ خوا ته روانه ده، له يوې داسي پيښې نه چې يوه انجلۍ خپل ميړه او د هغه ملګری، د کورني تاوتريخوالي لامله وژني. او د کابل چارواکي له خوښۍ ورته چکچکي وهي او ګمان کوي چې دغي انجلۍ د کابل اداري په ننګه له مجاهدينو سره جګړه کړې، او طالبان يې شهيدان کړي، چارواکي ځکه ورته خوښي ښکاروي چې ګونډي د ناټو شکست خورده پوځ، ځای همدغه قمرګله ورته ونيسي، او د طالب له ګذاره دوی وساتي. نو يو خو د حکومت لپاره په دومره لوړه کچه دومره سپيره دروغ ويل، ډېر د پست فطرته خلکو نښه ده، دويم دا چې له دې نه څرګنديږي چې د کابل اداره اوس د هغه اوبو اخيستي په څير ده چې ځک ته هم لاس اچوي.

د قمرګلي د کيسې اصل حقيقت داسي دی چې د قمرګلې پلار (شاه ګل رحيمي) خپله لور قمرګله د نعيم په نامه يو کس ته په بدل کې ورکړې، نعيم ده ته خپله خور ورکړې وه. قمرګله د خپل ميړه نعيم په کور کې خوشاله وه؛ خو د نعيم خور له شاه ګل سره نه وه خوشحاله، د پلار (نعيم) په کور کې ناسته وه، نه ورته راتله، يو وخت چې کله قمرګله د پلار (شاه ګل) کور ته راغله؛ پلار يې په کور کښېنوله، بېرته يې د خپل ميړه کور ته نه پرېښودله، پدې وجه د نعيم او شاه ګل ترمنځ لانجه پيل شوه، خبره جرګې ته ولاړه، جرګې چې کومه فيصله وکړه، نعيم ونه منله، او د خپل خسر (قمرګلې پلار) پر کور يې بريد وکړ، د قمرګلې مور او پلار يې ورته ووژل، قمرګلې يې په انتقام کې خپل ميړه نعيم او د هغه ملګری ووژل.

په سبا چې چارواکي خبر شول، دغه کيسه يې په طالبانو پسي وتړله، چې طالبانو پر دولتي ځواکونو بريد کړی او قمرګلي طالبان ويشتلي. دا خبره ارګ ، پارلمان او نورو ډېرو چارواکو بدرګه کړه، مګر د نيويارک ټايمز خبريال چې حقيقت را وسپړه؛ د چارواکو خبره رد بيا دروغ ثابته شوه.

- له پنځمي پيښې (د حمدالله محب) له څرګندونو نه دا خبره څرګنده شوه چې يو خو په هيواد کې د علماء کرامو د ترور لړۍ د حمدالله محب د امنيتي ادارو کمال دی، ځکه چې ورته وايي که علماء غواړي چې امنيت يې وساتل شي، د امنيتي ځواکونو مذهبي ملاتړ دي وکړي. دويم دا چې د حمدالله محب د دې غوښتني مطلب دا شو چې دوی په دې يقين دی چې نظام يې له معنوي او مذهبي اړخه عاري دی. څنګه چې يې ولس د کفارو لاسپوڅی رژيم بولي؛ داسي دوی هم پر دې ټکي باوري دي. له همدې ځايه ده چې پس له شلو کالو بيا هم له علماء کرامو د امنيت ساتلو په بدل کې له هغوی نه د مذهبي ملاترغوښتني کوي. پای .....!

# د بــدر الفــتاوی ۳ جلــد




م - عزيزي

څه وخت وړاندې د کابل رژيم د ولسمشر لومړي مرستيال (امرالله صالح) د افغانستان د سولې په هکله يو جوړ شوي څېړنيز کنفرانس کې په خپلو نورو بې بندوبارو او حقائق مسخه کوونکو خبرو سربېره وويل چې طالبانو په خپل وخت او دوره کې قانون او شريعت ته جوابګو محاکم او عدلي نظام نه درلود، محکمې يې د هغه په اصطلاح صحرايي، مزاجي او نظامي وې. صالح دا هم وويل: که څوک وايي چې طالبانو مستند شرعي نظام پلی کړی و او فيصلې يې شرعي وې؛ نو سند ، منهج او د خپلو کړنو کتاب او رساله دې وړاندې کړي!!

ما هڅه کوله چې د تېر اسلامي امارت د هرې برخې او ارګان د تګلارې او لاسته راوړنو په اړه مدلل او روښانه حقائق راټول او وړاندې کړم؛ چې له ډلې يې د اسلامي امارت د تير وخت د افتاء او قضاء برخې هم وې. د الله تعالی نصرت او مدد ته ګوره چې په همدې وخت کې د بدرالفتاوی ۳ ټوک چاپ شو که څه هم د بدرالفتاوی دوه ټوکونه پخوا هم چاپ شوي وو خو رانه هير وو.

کله مې چې بدرالفتاوی دريېم ټوک له سره ترپايه وکوت او پکې راوړل شوي ارزښتناک او قيمتي مباحث او درداني مې په غور وليدلې، نو ومې ويل چې امرالله صالح او نور مغرضين د تعصب او کينې په څومره لويه کنده کې پريوتي چې هڅه کوي لمر په دوو ګوتو پټ کړي.

د بدرالفتاوی د ۳ جلد په ۲۸ مخ کې مې د اسلامي امارت د مؤسس عاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد هغه استفتاء هم وليده چې پکې د امارت له مرکزي دارالافتاء څخه يې د قطاع الطريق، غل، زاني، لوطي او نورو بې بندوبارو په اړه د حد، زجر او د امير د صلاحيت په هکله وضاحت غوښتل شوی او د مرکزي دارالافتاء له لوري په ډېر متانت، صراحت او شرعي بصيرت پرته له دې چې د امير کوم بې ځايه لحاظ وشي، جواب ورکړل شوی، حدود او هغوی ته د زجر په برخه کې يې د امير صلاحيتونه په ګوته کړي.

دغه ډول په بدرالفتاوی کې مې د امارت د ګڼو واليانو او د مهمو ادارو د مشرانو شرعي غوښتني وليدلې چې د استفتاوو په شکل يې د خپلو مربوطه حساسو امورو د چلند په باب له مرکزي دارالافتاء څخه کړي چې د بدرالفتاوی نيږدې ۴۴۴ مخونه په همدې مباحثو، فتواوو او شرعي لارښوونو ډک او رانغاړل شوي دي.

دغه راز په بدرالفتاوی کې د مسلمان د فردي ژوند سره د اړونـدو مسـائلو ترڅنګ د هغـو مسـائلو ځوابونـه هـم موندلی شئ، چې د يو اسلامي نظام کارکوونکي په خپل کار کې ورته اړتيا لري، لکه د ښـاروالۍ اړونـد مسـائل، د ګمـرک او محصول اړوند مسـائل، زنـدانيانو سـره د تعامـل او د هغـوی لـه لـوري زنـدان کـې د جنجـال جوړولـو پرمهـال شـرعي برخورد، د قاچاقي مالونو سره تعامل او د نشه يـي مـوادو سـره تـر ضـبط کيـدو وروسـته د اسـلامي حکومـت تعامـل او برخورد او داسې نور...

زما په اند د بدرالفتاوی درې چاپ شوي ټوکونه او راروان ټوکونه که په همدې مفاهيمو د درنو لوستونکو لاس تـه ورشي ـ الله تعالی دې له ځنډ او خنډ څخه ليرې وساتي ـ باور وکړئ چې د ابه د اسلامي امارت د تېر ديني او شـرعي عظمت او شاهکاريو د ځليدا او خونديتوب يو تل پاتې اصل، مصدر او مشال وي.

زه د اسلامي امارت د مرکزي دارالافتاء د مشر او د اسـلامي امـارت د تېـرې دورې د سـترې محکمـې د مشـر د هيواد او سيمې په کچه د نوميالي عالم او استاد شيخ القران والحديث مولانا مفتي نورمحمد ثاقب صـاحب حفظـه اللـه همت، اخلاص او بصيرت ته سلام کوم او د عقيـدت نـذرانې ورتـه وړانـدې کـوم چـې لـه خـورا زيـاتو مصـروفيتونو او صحي ستومانيو باوجود يې د اسلامي امارت د تېر شرعي نظام مهمې فتوې او ديني پريکړې د يـوې مسـتندې علمـي سلسلې (بدرالفتاوی) ترخواږه او رانه نامه لاندې پـه کتـابي شـکل کـې تمثيـل او راتلونکـو نسـلونو تـه يـې دا حقيقـت واضح او د هغو سترګو ته کينبود چې د ملامحمـدعمر مجاهـد رحمـه اللـه تـر زعامـت لانـدې راغلـی او جـوړ اسـلامي نظام يوازې د خولې او شعار خبره نه وه، بلکې يو داسې رښتينی او برحق نظام و چې له امير څخه نيولې تـر افـرادو او منسوبينو پورې مکلف او اړ ول چې د مقدس شريعت او حنفي فقهې تـر لارښـوونو او ارشـاداتو لانـدې خپـل کـړه وړه عيار او برابر پرمخ بوزي.



# د ذی الحجې د میاشتې لس ورځې او قرباني

مفتي محمدګل سعید

الله تعالی په قران کریم کې په همدې ورځو باندې قسم کړی دی. فرمایي: والفَجْر ولیالٍ عَشْر. په دې آیت کې د یادوو شویو لسو ورځو په اړه لوی عالم شاه ولي الله دهلوي ؒوایي: له [الفَجْر] څخه مراد د لوی اختر ورځ او له [ولیالٍ عَشْر-] څخه بیا مراد تر لوی اختر وړاندې لس ورځې دي. ابن تیمیه او ابن قیم هم همدا خبره غوره ګڼلې ده. ابن کثیر ؒ بیا د آیت کریمه لس شپې؛ د لوی اختر لومړنۍ لس ورځې بولي. دا لس ورځې د عبادت ځانګړې ورځې دي چې باید الله جل جلاله پکې زیات یاد کړی شي او همدارنګه لوی عبادت یانې حج هم په همدې ورځو کې ادا کېږي. ستر څښتن جَلَّجَلَالُهُ فرمايلي: وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَى كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ * لِيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ عَلَى مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ- ( د حج سوره، ۲۸ نمبر ایت). ژباړه: او په خلګو کې د حج اعلان وکړه، نو تاته به راځي پلي او سواره په هره ګړندۍ سپرلۍ، د خپلو ګټو لپاره به له هر لرې ځای راځي، او په معلومو ورځو کې د الله جل جلاله نوم یاد کړئ په هغه څارویو چې در کړل شوي دي.ځینې دینپوهان په دې عقیده دي چې د نړۍ بهترینې ورځې د لوی اختر لومړۍ لس ورځې دي چې د عرفات ورځ هم پکې ده. عرفات هغه ورځ دی چې الله تعالی پکې د جهنم دروازې تړلې وي، د خپلو بنده ګانو دعاګانې قبلوي، د هغوئ ګناهونه بخښي او جنت ته یې دننه کوي.ډېرې صحابه کرام او ستر علماء وايي چې: د أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ موخه د لوی اختر اولې لس ورځې دي. په یادو لسو روځو کې دوهمه ستره ورځ د لوی اختر ورځ ده چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم یې په اړه فرمایي:إِنَّ أَعْظَمَ الْأَيَّامِ عِنْدَ اللَّهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَوْمُ النَّحْرِ ثُمَّ يَوْمُ الْقَرِّ- د ابو داود سنن . ژباړه: رښتیا هم چې الله جَلَّجَلَالُهُ ته تر ټولو ورځو غوره ورځې د قرباني او د قربانۍ تر ورځې وروسته (یانې د لوی اختر دوهمه) ورځ ده. د دې ورځې په اړه نبي کریم صلی الله علیه وسلم یو ځای داسې فرمایي: عن أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ:دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ يَعْدِلُ الْجِهَادَ؟ قَالَ: لاَأَجِدُهُ. قَالَ:هَلْ تَسْتَطِيعُ إِذَا خَرَجَ الْمُجَاهِدُ أَنْ تَدْخُلَ مَسْجِدَكَ فَتَقُومَ وَ لاَ تَفْتُرَ، وَتَصُومَ وَ لاَ تُفْطِرَ؟ قَالَ: وَمَنْ يَسْتَطِيعُ ذَلِكَ؟ ژباړه: ابو هریرة وايي چې یوه ورځ یو سړی پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته راغی او ویې ویل : ما ته داسې کار را وښیه چې بدله یې له جهاد سره برابره وي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: چې داسې کار نشته. بیا یې ورته وویل چې: ته داسې کولی شې چې کوم وخت مجاهد له خپله کوره ووځي او ته جومات ته داخل شې، دومره لمونځ وکړې چې ستړی نشې او په دوامداره توګه پرته له ماتولو روژه ونیسې؟ هغه ځواب ور کړ چې دا د چا په وسه پوره ده؟نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دې لسو روځو د فضیلت په اړه فرمایي: عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ النَّبِيِّ علیه السلام أَنَّهُ قَالَ: مَا الْعَمَلُ فِي أَيَّامٍ أَفْضَلَ مِنْهَا فِي هَذِهِ). قَالُوا! وَلاَ الْجِهَادُ ؟ قَالَ، وَلاَ الْجِهَادُ، إِلَّا رَجُلٌ خَرَجَ يُجاهد بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فَلَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ. ترجمه: له حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې نبي رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې د الله تعالی په نزد داسې کومه ورځ نشته چې ښه او نیک عملونه دې هغه جل جلا له ته دومره خوښ وي. صحابه کرامو وویل چې؛ اې د الله رسوله: ایا جهاد هم د دې ورځو د نیکو کړنو په اندازه نه دی؟ هغه وفرمایل: هو جهاد هم پدی ورځو کې د تر سره شوي ښه کار (عمل) سره سم نه دی.لاکن پرته له هغه

کسه چې خپل سر او مال دواړه ور سره یوسي خو یو هم را نه وړي ( یانې چې د الله تعالی په لاره کې شهید شي). پدې لس ورځو کې د ښه چار (عمل) بدله د الله تعالی په لاره کې تر جهاد هم ډیره ده. په دې ورځو کې بایدمسلمان پر خپلو ټولو تیرو گناهونو د زړه له تله توبه وباسي، تسبیح، تحمید، تهلیل او په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې دې درود وویل شي. له ابن عمررضي الله عنه څخه حدیث روایت شوی چې: ما من ایام اعظم و لا احب الی الله العمل فیهن من هذه الایام العشر فاکثروا فیهن من التهلیل و التکبیر و التحمید-رواه احمد. امام بخاري لیکلي دي چې :کان ابن عمر وأبو هریرة یخرجان إلی السوق في أیام العشر یکبران ویکبر الناسُ بتکبیرهما. ژباړه: ابن عمر او ابو هریره ( رضی الله عنهم ) دواړه به په دې لسوورځو کې بازارونو ته وتل، تکبیرونه ( الله أکبر الله أکبر، لا إله إلا الله، والله أکبر الله أکبر ولله الحمد ) به یې ویل او نورو خلکو به هم ور سره بدرگه کول. په دې ورځو کې د روژې نیول ډېر زیات ثواب لري. د عرفات د ورځې روژه پرته له حجاجو؛ نورو مسلمانو ته سنت ده. څکه نبي کریم ﷺ یې په اړه فرمایي: صِیامُ یُومِ عَرَفَة، أحْتَسِبُ علی اللهِ أنْ یُکَفِّر السنَة التِي قَبْلَه، والسَّنَة التِي بَعْده. ژباړه: امیدلرم چې د عرفې ( عرفات ) د ورځې روژه به د تېر او راتلونکي کال ټولو گناهونو ته بدله وي. له حفصې رض څخه روایت شوی دی چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم د عاشورا د ورځې، د دغو لسو ورځو او د هرې میاشتې د دریو ورځو روژې نه پرېښودې.

همدارنگه قرباني هم یو مهم عبادت دی چې د اسلام د شعائرو څخه دی د جاهلیت په زمانه کښې هم دا عبادت گڼل کیدی خو د بتانو په نوم به قرباني کیدې، تر اوسه په نورو مذهبونو کې د یو دود او رواج په توگه سره اداء کیږي، د بتانو په نوم یا د حضرت عیسی علیه السلام په نامه قرباني کیږي.

الله تعالی په سورت کوثر کې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته حکم کوي چې لکه څرنگه چې لمونځ د الله تعالی څخه ماسوا د بل چا لپاره نشي کیدی نو قرباني هم باید د الله تعالی په مقدس نامه وشي د (فصل لربک وانحر) همدا مفهوم دی په یو بل آیت کې هم دغه مفهوم په بل عنوان سره داسې بیان شویدی: ان صلاتی ونسکی ومحیایی ومماتی لله رب العالمین. ژباړه: بې شکه زما لمونځ، زما قرباني، زما ژوند او زما مرگ خاص د الله جل جلاله لپاره دی.

نبی کریم صلی الله علیه وسلم لس کاله په مدینه منوره کې تېر کړي دي او هر کال به یې قرباني کوله.ددې څخه معلومه شوه چې قرباني یواځې د مکې معظمې سره تړاو نلري، بلکې په هرځای کې، په هر ښار کې د شرائطو د پوره کیدو وروسته واجب دی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم به مسلمانانو ته د قرباني په کولو تاکید کاوه له همدې کبله د جمهورو مسلمانانو په نزد د قرباني کول واجب دی.

قرباني لکه د لمانځه په څېر ځانته وخت لري تر هغه وخت مخکې د قرباني کول جواز نلري ، د اختر د ورځې د سهار تر داخلیدو مخکې قرباني کول نه صحیح کیږي ، کله چې سهار داخل شي، نو د قرباني وخت هم شروع کیږي او اخیري نیټه یې د اختر دریمه ورځ ده. مطلب دا چې د قرباني وخت درې ورځې او دوه شپې دی . البته بهتره داده چې د ورځې وي ، د شپې مکروه بلل کیږي ، دارنگه په ورځو کې ړومبۍ ورځ تر نورو ډیره بهتره او د اجر په اعتبار زیاته ده. په بدایع الصنایع کې دي: فَلَا یَجُوزُ لِأَحَدٍ أَنْ یُضَحِّيَ قَبْلَ طُلُوعِ الْفَجْرِ الثَّانِي مِنْ الْیَوْمِ الْأَوَّلِ مِنْ أَیَّامِ النَّحْرِ وَیَجُوزُ بَعْدَ طُلُوعِهِ سَوَاءٌ کَانَ مِنْ أَهْلِ الْمِصْرِ أَوْ مِنْ أَهْلِ الْقُرَى ، غَیْرَ أَنَّ لِلْجَوَازِ فِي حَقِّ أَهْلِ الْمِصْرِ شَرْطًا زَائِدًا وَهُوَ أَنْ یَکُونَ بَعْدَ صَلَاةِ الْعِیدِ ، لَا یَجُوزُ تَقْدِیمُهَا عَلَیْهِ عِنْدَنَا .

قرباني پر هر مسلمان که نر وي او که ښځه وي چې عاقل بالغ او مقیم وی، واجب دی . په داسې حال کې چې (۲۰۰) درهم ولري، چې دا (۵۲ نیمې) تولې سپین زر کیږی یا ددې قیمت ولري یا نور سامان ولري او یا څمکه ولري چې قیمت ئې (۲۰۰) درهمو ته رسیږي او ترحاجت اصلي یې زیات وي. په اوسنی وخت کې د حنفي فقهي پربنسټ (۵۲نیمی) تولې سپین زر (۷۰۰ گرامه) سپین زر کیږی، نو په هر وخت او هره زمانه کښې یو مسلمان دا کولای شي چې ددې سپینو زرو قیمت معلوم کړي چې دا د قرباني

او زکات نصاب دی. زکات کـال تېرېـدل غـواړي او قربـاني کـال تیریدل نه غواړي که یو څوک د اختر په ورځ نصاب پـوره کـړي لا به قرباني کوي. درې جامې په حاجت کـي داخلـې او څلورمـه يې تر ضرورت زیاتـه گڼـل کيـږي ، د سـکونت او اسـتوګنې لـه کورڅخه پرته بل کور تر ضرورت زيات دئ . په يوه سرائ کې تر دووه خونـو زيـاتې غرفـې او کـوټې تـر حاجـت زيـاتې دي ، دارنګه تر حاجت زیاتې غالۍ هم په نصاب کـي شـمېرل کيـږي. دارنګه هغه څوک چي کتابونه ولري ، کـه دده د خپلـې مطالعې لپاره ؤ، نو هغه کتاب په نصاب کې داخليږي کوم چـي لـه ده سره د هغه بله نسخه هم موجوده وي ، او که یو چا د نورو د مطـالعې لپاره کتابونه ايښي ؤ، نو دا هم په نصاب کي شامليږي . پـر هغـه ښځه هم قرباني شته چي مهر يې معجل وي ، او په مهر مؤجل کې قرباني نشته. نابالغ او مجنون که د نصاب خاونـد ؤ ، نـو پـدې اړه صحيح قول دادئ چي پر دوی قرباني کول واجب نه دي. پـلار او وَلِي يې نشي کولائ چي د هغوی لـه مـال څخـه قربـانی وکـړي ، البته له خپل مال څخه يـې کـولائ سي . دارنګـه پـر مسـافر هـم قرباني کول واجب نه دي، البته مستحب کار دئ چي وېې کـړي ، که مسافر د قرباني په ورځو کې مقيم شو ، كه څه هـم د اخـيري ورځې يوه ګنټه پاتـه وي قربـاني وربانـدې واجـب ګرځـي . و في المبسوط : قَالَ ( وَهِيَ وَاجِبَةٌ عَلَى الْمَيَاسِيرِ وَالْمُقِيمِينَ عِنْدَنَا) وايضـا فيه: «وَإِنْ كَانَ لِلصَّبِيِّ مَالٌ فَقَالَ بَعْضُ مَشَايِخِنَا عَـلَى الْأَبِ وَالْـوَصِيِّ أَنْ يُضَحِّيَ مِنْ مَالِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَـلَى قِيَـاسِ صَـدَقَةِ الْفِطْرِ الْأَصَحُّ أَنَّهُ لَا يَجِـبُ ذَلِـكَ ، وَلَـيْسَ لَـهُ أَنْ يَفْعَلَـهُ مِـنْ مَالِـهِ . فقهاءکرامو ليکلي دي چي د قبرو د زيارت لپاره څلور ورځـې تـر ټولو بهترې ورځې دي : (دوشـنبه ، پنجشـنبه ، جمعـه او هفتـه). همدارنګه په هغو وختونو کې زيارت کول ډير فضيلت لري کوم چې شريعت له برکته ډک وختونه بللي دي، لکه د برائت شپه، د ذی الحجې د مياشتې اولنی لس ورځې ، ددواړو اخترونو ورځـې ، او د محرم لسمه. له دې څخه معلومه شوه چي د اختر پـه ورځ د وفات شويو قربيانو مقبرې ته تلل ، او دعا ورته کول مسـتحب او افضل کار دئ. قـال في الهنديـة: وأفضـل أيـام الزيـارة أربعـة يـوم الاثنين والخمـيس والجمعـة والسـبت والزيـارة يـوم الجمعـة بعـد الصلاة حسن ويوم السبت إلى طلوع الشمس ويوم الخميس في أول النهار وقيل في آخر النهار وكذا في الليالي المتبركة لا سيما ليلة بـراءة وكذلك في الأزمنة المتبركة كعشر ذي الحجـة والعيـدين وعاشـوراء وسائر المواسم كذا في الغرائب.

هغه څوک چې له ده څخـه داخـتر پـه لمانځـه کـې د اول رکعت تکبيرونه فوت شي ، او امام قرائـت وايـي ، نـو دی بـه لـه تکبير تحريمه وروسته درې تکبيره ووايـي ، او همـدا ډول دې لـه امام سره شريک شي. هغه څوک چـي لـه امـام سره د رکـوع پـه حال کې يو ځای شي، نو که دده په فکر درې واړه تکبيرونـه پـه ولاړه ادا کولائ شي ، او له امام سره يې رکوع نيـولئ شـوائ ، نـو په ولاړه دې تکبيرونه ووايي لاسونه دې غوږنو ته وړي ، او کـه د رکوع د تيريدو ويره وه ، نو په رکوع کې به درې تکبيره ووايي ، خو لاسونه به غـوږو تـه نـه پورتـه کـوي. او کـه لـه يـو يـا دوو تکبيرونو ويلو وروسته سملاسي امام پورته شو ، نـو لـه ده څخـه پاتـه تکبيرونـه سـاقطيږي ،او کـه يـو څـوک لـه امـام سره د اول رکعت د قومې په حال کې يو ځای شو ، نو هغـه بـه اول رکعـت سره له تکبيرونو راګرځوي .( إذا أدرك الإمام في صلاة العيـد بعـد ما تشهد الإمام قبل أن يسلم أو بعدما سلم قبل أن يسـجد للسـهو أو بعدما سجد للسهو ولم يسلم الإمام فإنه يقوم ويقضي صلاة العيد) .

دلوی اخترپه ورځ سهار وختـي راپورتـه کيـدل ، غسـل او مسواک وهل ، پـاکې، سـتره او عمـده جـامې اغوسـتل ، عطـر او خوشبويي لګول، د اختر تر لمانځه مخکې خوراک نه کول ، عيد ګاه ته د تلو په وخت په لوړ اواز تکبيرونه ويل مستحب دي .

قرباني ته د فقهې په اصطلاح کـې «اضـحيه» ويـل کيـږي ، اضحيه د هجرت په دوهم کال مشروع شوې ده ، په همدغه کـال د دواړو اخترنو لمونځ او زکات هم مشروع ګرځيـدلي دي. فقهـاء کرامو د اضحيې د ثبوت لپاره لـه قـرآن څخـه دغـه مبـارک آيـت وړاندې کوي ، چي الله پاک فرمايي : فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ (الکوثر ۲) . ځينو مفسرينو ددې تفسـير پـدې ډول کـړی دی چـي پـه دې آيت کې له لمانځه څخه د اختر لمونځ او له نحر څخه قرباني کـول مراد دي . او په احاديثو کـې د قربـاني د ثبـوت لپـاره ډيـر دلايـل

موجود دي، چې يوځو يې دادي: عَنْ أَنَسٍ قَالَ ضَحَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ أَقْرَنَيْنِ ذَبَحَهُمَا بِيَدِهِ وَسَمَّى وَكَبَّرَ وَوَضَعَ رِجْلَهُ عَلَى صِفَاحِهِمَا. ژباړه: له حضرت أنس څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ دوه سپين رنگي پسونه چې ښکرونه يې درلودل پخپل لاس، پدا ډول ذبح کړل چې خپله مبارکه پښه يې د هغه د غاړې پر طرف کينبودله او بسم الله او الله اکبر يې ووايه.

عن أبي هريرة أن رسول الله قال: من كان له سعة، ولم يضح، فلا يقربَّن مصلاَّنا. يعني هغه څوک چې شتمن وي او قرباني ونکړي ، هغه دې خامخاضرور زموږ عيدگاه ته نه حاضريږي . دارنگه روايت دئ چې د قربانۍ په ورځو کي الله تعالی ته قرباني تر هر نيک کار ډيره زياته خوښه او بهتره ده ، د قرباني د هر وينبته او وړۍ په بدل کې قرباني کونکي ته يوه نيکي ورکول کيږي . د قرباني د وينې څاڅکئ مخکې له دې چې مځکې ته رسيږي، د الله په دربار کي قبوله گرځي. قرباني واجب عمل دی اوبهتره داده چې د قرباني حيوان پخپل لاس ذبحه کړای شي ، او يا د قرباني د ذبحې په وخت کې حاضر اوسي ، او د ذبحې آله بايد ښه پرې کونکې او تيره وي ، او مذبوح ته تر هغه بايد انتظار وکاږي تر څو يې له ټول جسد څخه حيات ووځي او د قرباني د غوښو په اړه مناسب طريقه داده چې درې برخې کړی شي ، يوه برخه يې د ځان لپاره راوگرځول شي ، دوهمه خيرات او دريمه يې پر قريبانو وويشل شي ، که څه هم هغوۍ ځانته قرباني کړې وي.

قرباني يو عظيم الشان عبادت دی. د حضرت ادم عليه السلام د زمانې د شروع څخه تر امت محمدﷺ پوري مشروع را روانه ده، په هر مذهب او ملت کي پر دې (قرباني باندي) عمل کيږي. په قران کريم کي وايي:(و لكل امة جعلنا منسكا ليذ كروا اسم الله علي مارزقهم من بهيمة الانعام) الاية. (الحج ) ژباړه: موږ د هر امت لپاره قرباني مقرر کړل، چې هغه په مخصوص حيواناتو باندي د الله نوم واخلي کوم چې الله تعالی ورکړی دي.

د قرباني عمل که څه هم په هر امت کي جاري ؤ، خو د حضرت ابراهيم عليه سلام په وخت کې يې خاص ارزښت ترلاسه کړی دی. په همدې وجه ورته سنت ابراهيمي ويل کيږي. ځکه حضرت ابراهيم د الله تعالی د رضامندي په خاطر خپل زوی حضرت اسماعيل د قرباني لپاره وړاندي کړی دی. د دغه عمل په ياد کې هر کال مسلمان قرباني کوي. په دغه قرباني سره يو اطاعت شعار مسلمان ته دا درس ورکول کيږي چي هغه د خپل رب د رضامندي په خاطر هر ډول اطاعت ته تيار دی. د خپل مال او متاع حب يي ترک کړی او خالص د الله تعالی حب يي په زړه کې ځای نيولی دی.

په حديث شريف کې دي: عن زيد ابن ارقم رضي الله عنه قال قال اصحاب رسول اللهﷺ يا رسول الله! ما هذه الاضاحىّ قال سنة ابيكم ابراهيم عليه سلام قالو فما لنا فيها يارسول الله قال بكل شعرة حسنة قالو فالصرف يارسول الاه قال بكل شعرة من الصوف حسنة. سنن ابن ماجه.

ژباړه: حضرت زيد بن ارقم رضی الله عنه وويل چې د رسول الله ﷺ څخه صحابه ؤ سوال وکړي چي يارسول الله ﷺ دا قرباني څه ده؟ (يعني د قرباني حيثيت څه دی؟) رسول الله ﷺ وفرمايل: ستاسو د پلار حضرت ابراهيم عليه سلام سنت (طريقه) ده. صحابه ؤ پوښتنه وکړه چي په دې سره موږ ته څه ترلاسه کيږي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: د هر وریښتي په بدل کي يوه نېکي ده. صحابه ؤ بيا سوال وکړي چي يارسول الله ﷺ د وړۍ (په بدله کي څه ترلاسه کيږي؟) رسول الله ﷺ وفرمايل: د وړۍ په هر وریښتي باندي نيکي ده.

همدارنگه په بل روايت کې دي: عن عايشه رضي الله عنها ان رسول الله ﷺ قال : ما عمل ادمى من عمل يوم النحر احب الى الله من اهراق الدم انه اليتاتى يوم القيامة بقروبها و اشعارها واظلافيها وان الدم يقع من الله بمكان قبل ان يقع من الارض فطيبوا بها نفسا. ژباړه: د عيد الاضحی په ورځ د الله تعالی په وړاندي تر قرباني د وينو د بهېدلو څخه بل نيک کار محبوب نه دی، او د قيامت په ورځ به د قرباني حيوان د خپلو ويښتانو، ښکرو او اظلافو سره راځي، او د قربانيويني په ځمکه د لوېدو

ځخه مخکې الله تعالی یې قبوله کوي، نو په دې خاطر تاسو په ښه زړه سره قرباني کوئ.

همدارنګه په بل حدیث شریف کې دي: عن ابن عباس ﷺ قال قال رسول اللهﷺ: ما انفقت الورق فی شی افضل من نحیرة فی یوم العید. ژباړه: د حضرت ان عباس ﷺ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وفرمایل: هیڅ مصرف د الله په وړاندې دومره فضیلت نه لري لکه هغه مصرف چې د عیدالضحی په ورځ په قرباني باندې وشي.

مسئله: پر ښځه هم قرباني واجب دی چې تر حاجت زیات مال او روپۍ و لري چې اندازه ئې (۷ نیمی) تولی سره زر او یا هم (۵۲ نیمی) تولی سپین زرو ته ورسیږی، باید د سپینو زرو د قیمت د مقدار معلومات وشی چې څومره روپې یې کیږي، دا ځکه چې یو وخت په یوه قیمت وی او بل وخت په بل قیمت وي. په اوس وخت کې د سپینو زرو له قراره که چا ۴۰۰۰۰ افغانۍ یا ۷۷۰۰۰ پاکستانۍ روپۍ درلودې پر هغه قرباني واجب ده.

مسئله: د سرو یا سپینو زرو غاړکۍ، غوږوالۍ ، بنګړی او یا هم نور زیورات که څه هم استعمالیږی چې مقدار ئې و شرعی اندازی ته ورسیږی نو قرباني، سرسایه او زکات واجب دی (بهشتی زیور ص ۲۹)

مسئله: که یو سړی یا یوه ښځه د درو جوړو کالیو څخه زیات د اغوستلو کالی ولری او قیمت ئې و نصاب ته ورسیږی نو بیا پر دواړو قرباني او سرسایه واجب ده. (شامی ج ۵ص ۲۱۹، هندیه ج۵ص ۲۹۳)

مسئله: د کوچنی هلک او کوچنی انجلی چې نابالغه وی په مال کی قرباني نشته، که څه هم ډیری روپۍ ولري. (کفایت المفتی ج۸ ص ۱۷۶، شامی ج ۵ ص ۲۲۳)

مسئله: که یو سړی د تجارت لپاره مځکه ، دکان، سرای او نور سامان ولري چې قیمت یې نصاب ته رسیږي قرباني پرې واجب ده. (احسن الفتاوی ج۷ مخ ۷۰۶)

مسئله: که یو سړي دوکانونه درلودل او په کرایه یې ورکړي وه او یایې مځکه او باغ درلوده نو د شیخینو په نزد یې قیمت معتبر دی که قیمت یې نصاب ته رسیږي نو قرباني پرې واجب ده او که قیمت یې نصاب ته نه رسیږي نو بیا قرباني پرې واجب نه ده او امام محمد صاحب وایې چې حاصل یې معتبر دی، نو که جایداد یې دده او دده د عیال د یوه کال نفقه ورکوله بیا قرباني پرې واجب ده او که یې د یوه کال نفقه نه ورکوله نو بیا قرباني پرې واجب نه ده او فتوا د امام محمد صاحب پر قول ده. (ردالمحتار ج۲ص۷۱، هندیه ج۶ ص ۲۸۷)

مسئله: که چیرې د یوه سړي ښځه، بالغان زامن او لوڼې ئې دومره مال ولري چې قرباني پرې کیږی نو دوی به قرباني کوي، د ښځې قرباني پر خاوند او د زوئ قرباني پر پلار واجب نه دی، که چیرې دوئ خپله شتمن وي، همدا شان پر زامنو د مور او پلارقرباني واجب نه ده خو که چیری یو زوی د مور او پلار لپاره قرباني کوي بیا څه خبره نشته، چې ددې قرباني ثواب زوی ته هم رسیږی، او که چیری اولاد ئې نابالغه وی نو بیا یی قرباني نه پر پلار شته او نه خپله پر دوی شته ده. (کفایت المفتی ج۸ مخ ۱۷۳)،( ردالمحتار ج ۵ مخ ۲۲۲).

مسئله: په حرام مال کې نه زکات شته، نه قرباني او نه هم سرسایه شته، لکه د سود په مال کې، د غلا، غصب، او که فرضا یو مسلمان داسې حرام مال ولري، نو پکار داده چې ټول خیرات کړي او مسکینانو ته ئې ورکړي. (احسن الفتاوی ج۷ ص ۵۰۶، شامی ج۲ ص ۲۸).

مسئله: که پر یو سړي پور(قرض) باندی وی مثلا ۵ لکه، او له ده سره ۴ یا۵ لکه روپۍ وی نو پر دغه سړی باندی قرباني نشته خپل پور دی اداء کړی. (الدرالمختار ج۲ ص ۵)

مسئله: پر مسافر باندې قرباني واجبه نه ده که څه هم روپۍ ولري. (الدرالمختارعلی هامش شامی ج ۵ ص ۲۲۲).

مسئله: که یو سړی کافر ؤ، مسافر ؤ او یا فقیر ؤ او د اختر په دریمه ورځ یا مسلمان شو، یا غنی شو، او یا هم مقیم شو پر هر یوه قرباني واجب دی .( ردالمحتار ج۵ ص ۲۲۲).



# دچین او ایران ترمنځ

## د اوږدمهالې اقتصادي ملګرتیا هوکړه!

ارمان

په وروستیوکې دایران اوچین ترمنځ ناڅاپه اړیکي سره ډېرخواږه شول، د خبري راپورونوله مخې: ایران موده وړاندې له هند سره د«چاه بهاربندرګاه» جوړولو تړون لغوه کړ او د هغه نه وروسته یې چین سره د«چاه بهار»په اړه نوی تړون لاسلیک کړ، دکوم په ترڅ کې به چې په راتلونکي کې یوخوا دچین او ایران ترمنځ اړیکي نورهم پراخ او خواږه شي خو دهندوستان لپاره به له دې پلوه حوصله ماتوونکی ثابت شي چې ددینه وړاندې یې هغه سره په ۲۰۱۶ زکې ورته تړون امضاء کړی و .

دایران اوچین ترمنځ ددې نوي تړون اهمیت له دې څخه هم ښکاري چې دټولې نړۍ خبري چینلونو اومیډیا ورته دمعمول نه هم زیات اهمیت ورکړپه نړۍ کې دکرونا وایروس لپاره دګروکړای شوې میډیا لخوا په لویو ورځپاڼو او رسنیوکې خپورکړای شو، اوددې تړون ځانګړې خبره داده چې لږترلږه دراتلونکې پیړۍ ترځلورومي یعني تر۲۰۵۰ زیږيز وربانديې عمل کیږي، چې ددې ستراتیژیک تړون اوسوداګرۍ په وجه به په سیمه کې لوی بدلونونه رامنځته شي، زکه په دې کې دامریکا اوهند دواړوګټې اغېزمنې کیدای شي اوچین به وړاندې لاړشي اوپه سیمه کې به دخپلې برلاسۍ پیداکولو صلاحیتونه نورهم ترلاسه کړي .

ددې تړون څخه څو ورځې وروسته جوته شوه چې ایران دچاه بهار، دریل ګآدي اوګازو دتړون څخه هند بهر کړی دی،ایران ددې وجه په ظاهره داښودلې چې هند ونکړی شول په ټاکلي وخت کې دخپلې ژمنې سره سم پیسې برابرې کړي، د یادونې وړده چې کله په ۲۰۱۶ زکې دایران، هند او افغانستان ترمنځ په دې اړه تړون لاسلیک کړای شو دهندلخوا اعلان شوی وچې دچاه بهارنه تر زاهدان پورې دریل ګاډي پټلۍ غځوي او پکې زیاته پانګونه به هندوستان کوي خواوس ایران پخپله دریل ګاډي پټلۍ غځولو فیصله کړې ده دایران اوچین ترمنځ تازه لاس لیک شوي تړون لاندې به چین په ایران کې دځلورسوه میلیارد ډالرپه ارزښت پانګونه کوي او ددې په عوض کې به ایران چین ته په راتلونکوپنځه ویشت کلونکې په ډېره ارزانه بیه خام تېل ورکوي.

دخوند خبره پکې داده چې اوس مهال امریکا،هند اونور هیوادونه دکرونا وایروس په وړاندې قرارلري او دهغه په مخنیوي لګیادي او ایران اوچین بیا په ډېره چوپتیا سره دومره مهم پرمختګ وکړ،دکتونکوپه نظراوس امریکا سیوا ددینه بله چاره نلري چې بندیزونه لګول اوګواښونه ورکول شروع کړي خوعملاً نه امریکا اونه هند ددې وړتیا لري چې دایران اوچین لپاره لویې ستونزې پیداکړای شي .

ددې تړون به ډېرپراخ اوترلري پورې نتایج ښکاره شي زکه د تړون چې کوم تفصیلات خپاره شوي دي هغه

تر څنګوبرخوغځیدلې دي اوپه راتلونکو۲۵ کلونوکې به ترنورو برخوهم وغځول شي.

تردې پورې چې ښکاري داسې ایران اوچین به ډېرنیږدې ملګري شي چې په دې سره به ضرورهندوستان له یوائیتوب سره مخ شي ممکن دچین او ایران ترمنځ دانوې دوستې اسراییل لپاره هم دزغم وړنه وي اوپه اړه یې خپله ناخوښې وښیي.

بل داسې معلومیږي چې هرڅومره امریکاپه افغانستان کې خپله بسته ګول کوي اوخپل پوځیان وباسي چین او دسیمې ګاونډي هیوادوپه خولو کې لاړې تیریږي،اودامریکا دخوښې پرته یوبل ته نږدې کیږي ترونونه لاسلیکوي .

په دې ترون باندې دامریکا لخوا بندیزونه هم شاید زیات تاثیر ونلري زکه ددینه وړاندې دامریکایي بندیزونوپه وجه په ایران کې بهرنۍ پانګونه بیخې کمه شوې وه اوس چې دچین لخوا هلته نوې پانګونه شروع شي نو دایران اقتصاد به په پښوودریږي، دیادولو وړده چې نن سبا په نړۍ کې چین هغه هیواد دی چې ترټولو زیات خام تېل اخلي او ایران لپاره چین له دې پلوه ارزښت لري چې یوخوډېرو تېلوته ضرورت لري اوبل ایران ته دجغرافیې له پلوه هم لنډ پروت دی.

بل داسې معلومیږي چې هرڅومره امریکاپه افغانستان کې خپله بسته ګول کوي اوخپل پوځیان وباسي چین او دسیمې ګاونډیو هیوادوپه خولو کې لاړې تیریږي، او دامریکا دخوښې پرته یوبل ته سره نږدې کیږي خپلمنځي ترونونه لاسلیکوي.

اوس په دې ترون سره به چین ته په یوه سیمه کې دوه آبي بندرګاوې په لاس ورشي دګوادر ترڅنګ چاه بهاربه هم په لاس ورشي هرچې افغانستان دی دهغه لپاره هم امتحان دی چې دامریکا اوهند سره دریږي اوکه دچین او ایران سره؟ دابه راتلونکی وښيي داسې ښکاري چې روسیه به هم دچین او ایران سره ودریږي په ورته ډول دسیمې نور هیوادونه هم شاید دچین اوایران دترون څخه ملاتړو کړي.

په مجموع کې دسیمې دهیوادونو ترمنځ خپلمنځي اقتصادي ملګرتیاوې اوشراکتونه دسیمې په امنیت اوثبات باندې هم مثبت اغېز درلودلی شي ،پکاردی دسیمې نورهم هیوادونه ځانونه ددې پرځای چې دامریکا اویانورو لري پرتو قوتونو شریکان اوملګري کړي باید دمنطقې هیوادونوسره اقتصادي شراکتونواوملګرتیاوو ته ترجیح ورکړي او په دې لړکې ټولوته دچین او ایران دانوی ګام یو ښه مثال دی . پای

# ای ابو بکره!

ابو بکر الصدیق (رضي الله عنه) به هر سهار د لمانځه نه وروسته د مدینې منورې نه بهر ووت، څوک نه پوهیدل چې چېرته ځي، د حضرت عمر الفاروق (رضي الله عنه) ورته اندېښنه شوه چې دی به څه کوي، یوه ورځ یې تعقیب کړ، ویې لیدل چې یو کور ته ننوځي او لږ وروسته بیرته راوځي. کله چې ابو بکر الصدیق (رضي الله عنه) له کوره راووت او لاړ، حضرت عمر فاروق ورغی. په کور کې یې یوه زړه ښځه ولیده، په دواړو سترګو ړنده وه او په ډېر کمزوري حالت کې وه. حضرت عمر رضي الله عنه ترې پوښتنه وکړه چې دغه سړی دلته د څه لپاره راځي؟ ښځې ورته وویل: زه یې نه پیژنم، خو هر سهار راځي، کور راته جارو کوي، ډوډۍ راته تیاروي او بیرته ځي.

حضرت عمر فاروق چې دا خبره واورېده، ځای په ځای کېناست، سخت یې وژړل او ویې ویل: «ای ابو بکره! هغو خلیفه ګانو ته دې څومره ستړیا جوړه کړه چې تر تا وروسته راځي!»

مفتي محمدګل سعيد

# د مظلوم آه



عبد الله طاهر چې کله د خراسان امیر ؤ، او دارالحکومت يې نیشاپور کې ؤ. نو یو آهنګر له هرات نه نیشاپور ته په سفر لاړ او یو څو ورځې یې هلته خپل کاروبار کاوه. بیا له خپل اهل وعیال سره د ملاقات په هوډ خپل وطن ته روان شو. آهنګر د شپې سفر پیل کړ او د خپل کور په لور روان شو. په دې ورځ کې امیر خپلو عسکرو ته امر کړی ؤ چې د ښار د لارو ساتنه وکړئ او مسافرو ته تکلیف ونه رسیږي. اتفاقا داسې وشو چې په دې شپه عسکرو غله ونیول او د خراسان امیر ته هم دا خبر ورسید. لیکن ناګهانه په دې غلو کې یو غل وتښتیده؛ عسکر وویریدل چې که امیر خبر شو نو موږ ته به سزا راکړي. عسکر د غله په لټه کې ؤ، چې ناګهانه یې نظر په آهنګر پریوت. عسکرو د خپل ځان د ساتنې په خاطر دا بې ګناه سړی ونیوه او له نورو غلو سره یې هغه هم یو ځای محبس ته روان کړ. او بیا یې له هغو سره یو ځای د امیر حضور ته پیش کړ.

د خراسان امیر پوهه شو چې دا ټول غله دي او د همدې امله نیول شوي دي، نو ځکه يي تفتيش ونکړ. نیک سیرت آهنګر پوهه شو چې اوس خو معامله ځما یواځې له الله سره ده او هغه به یې حل کوي او زما مقصد هم د هغه له کرم څخه حاصلیږي. نو اودس یې وکړ او د محبس په یوه کونج کې په لمانځه ودریده . دوه رکعته لمونځ یې وکړ، بیا یې سر په سجده کیښود . د هرو دوه رکعتونو نه وروسته یې سر په سجده کیښود او په ډیر عاجزۍ سره يي دعاګانې وکړې. او په دعا کې يي وویل: ای زما مالکه! ته ښه خبر یې چې په ما کې قصور نشته.

کله چې شپه شوه عبدالله طاهر په خوب کې ويني چې څلور پهلوانان سړي دده کټ رااخلي او په سختۍ سره يي له څلور واړو پښو څخه نيسي او پړمخې یې غورځوي، چې په همدې وخت کې له خوب نه راویښ شو، فورا یی (لاحول ولاقوة الا بالله) وویل، بیا یی اودس وکړ او دوه رکعته نفل لمونځ یی ادا کړ. رب ته بادشاه او ګدا ټول د خپلو پریشانیو د حل لپاره رجوع کوي. بیرته دوباره ویده شو بیا یی هماغه خوب ولیده. دا عمل ورسره څلور ځله وشو د خراسان امیر ددې واقعې په لیدلو سره زیات وویریده او دا یقین یې پیدا شو چې ضرور د کوم مظلوم آه راپسې دی.

نکند صد هزار تیر و تبر
آنچه یک پیره زن کند به سحر
ای بسا نیزهٔ عدد شکنان
ریزه گشت از دعاے پیر زنان

د خراسان امیر په همدې شپه کې د محبس مشر راوغوښت او پوښتنه یې ورڅخه وکړه چې رښتیا ووایه! تاسې خو به کوم یو مظلوم نه وي بندي کړی، د محبس مسئول وفرمایل: عالي جناب! نه پوهیږم چې مظلوم به څوک وي؛ لیکن دومره خبره ده چې په محبس کې یو کس شته دی چې ټوله شپه یې ژړاګانې کولې او لمونځونه یې اداکول او په ډیرې عاجزۍ سره ي دعاګانې کولې. امیر حکم وکړ چې دا کس فوراً را حاضر کړئ . کله چې دا کس د امیر په مخ کې حاضر کړی شو . نو امیر دده د معاملې تحقیق شروع کړ. بالاخره ورته معلومه شوه چې دا سړی بې ګناه

ده. امیر ورته معذرت وړاندې کړ او ورته ویې ویل: چې له ماسره به درې خبرې خامخا تسلیموې:

۱ـ ماته به معافي کوې.

۲ـ زما لخوا نه به زر دیناره قبلوې.

۳ـ چې کله هم څه قسم پریشاني درته ورسیږي ، نو ماته به راځې ددې لپاره چې زه درسره همکاري وکړم.

آهنګر ورته وووېل: ستا لومړۍ خبره چې ماته معافي وکړه، نو ما ته معاف کړی یاست. او هر څه ستا دوهمه خبره چې ستالخوانه زر دیناره قبول کړم، نو هغه هم ماقبول کړل. لیکن کومه دریمه خبره چې تا وکړه چې ماته به خپل مشکلات وړاندې کوې، نو دا له ماڅخه نشي کیدای.

امیر ورته وویل: دا ولې؟ نو دې سړي ځواب ورکړ چې هغه خالق او مالک ذات چې زما په څیر فقیر لپاره یې د ستا په څیر د بادشاه تخت په یوه شپه کې څلور ځله په بل مخ واړاوه، نو هغه ذات پریښودل او خپل مشکل بل چاته وړاندې کول د ژوند له اصولو نه خلاف کار دی. زما هیڅ داسې مشکل نشته چې د لمانځه له اداکولو سره حل شوي نه وي. یعنې ځما ټول کارونه له لمانځه سره پوره کیږي نو ماته د بل چا دربار ته د تللو اړتیا نشته.

# نجیب وتښتید !!

هغه طالب چې د وژونکو تدبیرونو او ګردابونو نه سالم او فاتح راووت هغه پکې د پیغمبر د سیاسي ژوند نه د اګاه طالب ژور درک و چې دا ټول پړاونه یې په یوه تنګه جغرافیه کې په متانت او تحمل سره وزغمل.

د رسول الله په شمول ټول صحابه کرام له ډیرو تعذیبونو او تکالیفو وروسته مجبور شول چې د مدینې په لور هجرت وکړي ځکه د مکې ځمکه پل پر پل سور اور ګرځیدلې وه.

خو د وخت په تېریدو سره داسې تحول راغی چې د مکي مشرکین په ځغاسته او د خدای پیغمبر پکې د تکبیر په داسې بدرګو؛ چې د تېر پېړ اسلام د تطبیق په تصور کې چا دا درک هم نشو کولای.

د طالب تصویر هم په یوه اړخ کې همداسې دردونکی انځور له ځاننه سره لري برخلیک یې دومره وینه زبیښونکی و چې آن د طالب په تصور کې د عادي ډیرور افغان لپاره د استوګنې ځای هم هغه لیرې وحشي جزیره وه.

اوس هغه وخت رارسیدلی دی چې د نجیب ننګیال په څېر د غرب کثیف مزدوران د خپل ژوند د تضمین لپاره د خپلو بادارانو په سوړو ننوځي.

دا د تاریخ په پیر کې له پتمنو پړاونو څخه یو پړاو دی چې د اشغال پر ضد مبارزینو مقدر سرلوړي او د ولسونو لخوا داسې تقدیریږي چې د ډیرو لپاره یې تصور هم ناشونې دی خو برعکس د کفر په نیلی سواره غلامان سپک او رټل کیږي. و قل جاءالحق و زهق الباطل ان باطل کان زهوقا



# ۲۱ مه پیړۍ او

## د چین بې ساري نظامي پرمختګونه

حسن زوی

په ۱۸ مې پیړۍ کې دبرتانې اوچین ترمنځ درامنځته شوې جنګ پرمهال دچین دفوځ شمېر نېږدې ۲۲۵ زرو ته رسېدلو خوبیایې هم د برتانې د۱۹زره مجهز فوځ په مقابل کې ماتې وخوړه اوچین اړ شو چې برتانې ته سرټیټ کړي ؛ دا پیړۍ چینایانو دځان لپاره دذلت پیړۍ بلله.

په ۲۰مې پیړۍ کې چې په چین کې کمونستي انقلاب رامنځته شو نو چینایي فوځ تر ډېره حده ځواکمن شو؛ او د ډېرو کورنیو جنګونو له امله چې چینایي فوځ یوتجربه کار او دجنګي فنونو سره اشنا شوی و نو په ۱۹۶۲م کال کې یې دهند سره په رامنځته شوي جنګ کې په ډېرې اسانۍ هند ته تاریخي ماتې ورکړه ؛ هندي فوځ دهماغې ماتې نه پس دچین دفوځ نه داسې مرعوب شو چې تر ننه پرې دچین دفوځ خوف اورعب پروت دی او د ۲۰۲۰م کال په ۱۵ مې نېټې چې په لداخ کې ددواړو لوریو ترمنځ شخړه رامنځته شوه چینایي فوځیانو په کانړو اوکوتکونو دیو افسر په ګډون ۲۰ هندي فوځیان ووژل.

وړاندې دچین فوځ په څو سترو واحدونو ویشل شوی وچې هرواحدیې زیات خپور او حرکت یې سست و خو له تېرو ۵ کلونو راهیسې چین په خپل فوځي نظام کې دبدلون راوستلو په لړ کې دخپل فوځ واحدونه کوچني اوپه ترټولوعصري وسلوسمبال کړل ترڅو یې خپراوی کم ، حرکت یې سریع او دجنګ میدان کې ددښمن سره یې مقابله مؤثره شي.

چین تر ډېرې مودې دجاپان اولویدیځ تر استعمار لاندې پاتې شویدی خوچین پخپله کله دچاپرضد تجاوز ندی کړی نو ځکه ترې ګاونډیان او دسیمې هېوادونه دا وېره نه لري چې په راتلونکي کې به استعماري ځواک وګرځي .

دروانې ۲۱ مې پیړۍ په پیل کې چین په سترو اقتصادي ځواکونو کې داخل شوی و خو کله یې دخپل نظامي ځواک دښکاره کولو کوښښ نه و کړی ځکه چې دچین په دولتي پالیسۍ کې داسې لیکل شوي (چین یوهېوادهم په سیاسي ، نظامي ،اقتصادي اوټولنیز ډول تر خپل واک لاندې راوستل نه غواړي ؛ دچین فوځي ټولې هلې ځلې یواځې دفاعي دي چې دا یې اساسي حق دی)

چین په جبوتي کې فوځي اډه جوړه کړیده خو هغه هم ددفاعی هدف لپاره ده ؛ دچین مدعا داده چې دا یې ددې لپاره جوړه کړیده چې په بحر هند کې یې دتجارتي هلو ځلو حفاظت وشي اوڅوک ورته ضرر ونه رسوي .

سره له دې چې چین تر ډېره حده د اقتصاد ترڅنګ په فوځي لحاظ هم پیاوړی شوی و خو د جنګونو نه دځان ساتنې پر پالیسۍ ټینګ ولاړ و تر دې چې د۲۱مې پېړۍ په دوهمې لسیزې کې امریکا چین وننګاوه نو چین محسوسه کړه چې اوس دجنګ نه دځان ساتنې دپالیسۍ وخت تېر دی نو ځکه یې دخپل اقتصاد ترڅنګ خپلې فوځي پیاوړتیا ته هم په بې ساري ډول پاملرنه زیاته کړه.

په تېره چې بیا شی جن پنګ دچین ولمشر شوی نوچین دخپل فوځ دښه مجهز کولو لپاره ډېرجامع او وسیع پلان په کار اچولی دی ځکه چې امریکا پدې بریالۍ شویده چې دچین پرضد اتحاد کې هند ، جاپان ، تایوان او آسترالیا ورداخل کړي چې دا د چین لپاره ډېره دتشویش وړ خبره ده .

**تایوان ،جاپان او آسترالیا درې واړه دچین سره ګډې ستونزې لري خویو هم دچین سره ښکر په ښکر کېدل نه غواړي ؛ په اوس وخت کې هند دچین لپاره اصل ستونزه ده ؛له ۲۰۱۴م کال نه چې پر هند دنریندر مودي په مشرۍ کې متعصب هندوان مسلط شویدي نو دهند بهرنۍ سیاست کې هم تغیر راغلی دی ؛ نریندر مودي او ډله یې په هندوانو کې دخپل محبوبیت پیداکولو په موخه دخپل نظامي ځواک په اړه دمبالغې نه کار اخلي او داسې ښکاره کوي لکه چې کمزوري ګاونډې هېوادونه له ستونې تېرولای او دچین په څېر دقوي هېواد نه ځایونه نیولای یا لږتر لږه ورسره مقابله کولای شي؛ هند دچین سره کابو ۴زره کیلو متره ګډه پوله لري چې د ۲۰ ځایونو په اړه ددواړو هېوادونو ترمنځ نزاع شتون لري .**

پدې ۲۰ ځایونو کې دواړه هېوادونه دخپلې سلطې دثابتولو اومضبوتولو لپاره سرکونه پلونه اوفوځي چوڼۍ جوړوي ،په همدې لړ کې یو پر بل باندې دحدودو نه دتجاوزتورونه هم لګوي چې له امله یې کوچني نظامي برخوردونه رامنځته کېږي لکه دجون په ۱۵ مې نېټې چې په لداخ سیمه کې ددواړو فوځونو ترمنځ شخړه رامنځته شوه ؛چینایې فوځیانو دټوپک یو ډز هم ونکړ په کوتکونو اوتیګو یې دیو افسر په ګډون ۲۰ هندي فوځیان ووژل.

خو دا د هند ستره اشتباه ده چې چین ورسره داړیکو دښه کولو کوښښونه کوي اوپه پرله پسې ډول له هند نه غواړي چې حالات دې نه خرابوي خو د مودي دولت دخپل محبوبیت دپیداکولو او دغرب د خوشالولو لپاره دنورو ګاونډیانو په څېر چین سره هم دروابطو خرابولوته پلمې ګوري او پرځای ددې چې ددې ستر ګاونډې هېواد نه ددوستۍ په صورت کې ګټه پورته کړي ورسره دښمني کوي حال داچې چین یواځې په اقتصادي ډګر کې نه بلکې په نظامي ډګر کې هم له هند نه ډېر وړاندې دی؛ چین اوس دخپل نظامي قوت دپیاوړ تیا لپاره انقلابي اقدامات کوي او د دې لپاره په ملیاردونو ډالر مصرفوي.

هند په تېرو ۷۳ کلونو کې پدې ونه توانېد چې په خپل هېوادکې دفقر کچه راکمه کړي بلکې غریب خلک پکې لازیات غریب او بډای پکې لازیات بډای شول.

دملګرو ملتونو له لورې په تازه خپرې شوې سروې کې راغلي دي چې دهند ۲۸ سلنه نفوس یانې کابو۵ سوه ملیونه انسانان دفقر دحالت سره مخامخ دي چې ددوئ بنسټیزې اړتیاوې نه پوره کېږي؛ په دوئ کې زیاتره دڅښاک دپاکو اوبونه بې برخې دي، وګې بیده کېږي اوزړې جامې اغوندي خو چین په تېرو ۴۰ کلونو کې دفقرنه دخپل ولس په راویستلو وتوانېد.

دامریکا جي ډي پي( دخپلو ملکي عوایدونه ترلاسه شوې پیسې ) ۲۱ ټریلیونه ډالر دي؛ چین په ټولې نړۍ کې دامریکا نه پس لویه یانې ۱۴ ټریلیونه ډالر جي ډي پي لري خوهند چې د نړۍ پنځم ستر اقتصاد دی جي ډي پي یې ایله ۲۵/۳ ټریلیونه ډالر ده یانې دچین دځلورمې

برخې نه هم کم دی ؛ د امریکا نظامي بودیجه ۷۲۱ ملیارده ډالر ده؛ په اوس وخت کې دامریکا نه پس دچین فوځي بودیجه په ټولې نړۍ کې تر ټولو ستره یانې ۲۶۱ ملیارده ډالر ده.

دهند فوځي بودیجه ۷۱ ملیارده ډالر ده ؛ داپه نړۍ کې تر ټولو ستره دریمه فوځي بودیجه ده خو بیا هم دچین دفوځي بودیجې دریمې برخې ته نه رسیږي او مهمه داچې د ا بودیجه په هندي ولس ډېر ستر بوج او په فقر کې یې دزیاتوالي د راتلو یوستر لامل دی .

دچین ولسمشر شی جنګ پنګ په فوځ کې دتبدیلیو په لړ کې دځمکني فوځ شمېر ددې لپاره د۱۳ لکو نه لس نیم لکو ته راکوز کړچې دکم شمېر فوځي ډلګیو کې تېزي زیاته او په حرکت کې یې اسانتیا وي؛ خودشمېر دکموالي سره یوځای یې په موډرنې ټیکنالوژۍ اوعصري وسلو دفوځ سمبالولو ته ډېره توجو کړیده ؛اوس دچین فوځ په غرونو کې دسفر او اوسېدو ترټولو زیاته وړتیا لري.

همداراز دچین سمندري ځواکونه هم دتېرو۶ کلونو راهیسې ډېر ځواکمن شویدي ؛چین اوس په ټولې نړۍ کې تر ټولو زیات جنګي جازونه لري ؛ چین د طیارو وړونکو ستروکښتیو ،جنګي سمندري جازونو او اوبتلونو جوړولو ته ډېره توجو کړیده چې ورسره په بحر الکاهل اوبحرهند کې دخپلو ګټو دساتنې او دخپلو حریفانو دمقابلې پوره جوګه شویدی.

دچین لویه تبدیلي د وسلو جوړولو په صنعت کې خودکفا کېدل دي ؛ په ماضي کې چین دنورې نړۍ نه وسلې اخستلې خو دچین دولسمشر دسترو تبدیلیو په لړ کې هغه دساینس اوټیکنالوژۍ پرمختګ ته ۱۵سوه ملیارده ډالر مختص کړل ،نتیجه داشوه چې اوس چین ټولې وړې اولویې وسلې پخپله جوړوي ؛ په ګڼو هېوادونو وسلې پلوري او اوس دامریکا نه پس دنړۍ تر ټولو ستر وسله جوړونکی هېواد ګرځېدلی دی.

دچین دفوځ په اړه دپرېکړو اختیاردمرکزي فوځي کمیسون په لاس کې دی چې دچین ولسمشرشی جن پنګ ددې کمیسون مشر دی او دا دچین لومړی ولسمشر دی چې ددې کمیسون مشري کوي ؛ پدې توګه دفوځ اصل حاکم دچین ولسمشر دی.

ولسمشر دچین توغندویې نظام ډېر فعال اوموډرن کړیدی؛ ډی ایف ۱۷ اود هوا نه په هوا کې هدف ویشتونکي پي آی ۲۱ یې ډېر پرمختللي توغندي دي ؛ چین اوس دخپل دې پرمختللي توغندویې نظام پرمټ په ډېرې اسانۍ دخپلو ټولو حریفانو مقابله کولای شي ؛ ولسمشر په ۲۰۱۵م کال کې دراکټ فورس په نوم دخپل توغندویې نظام لپاره دفوځ مستقله څانګه جوړه کړه چې ورسره دتړلو فوځیانوشمېر ۱۲۵زرو ته رسیږي .

همدا راز ولسمشر شی جن پنګ په ۲۰۱۵م کال کې د اسټرټیجیک سپورټ فورس په نوم هم یو مستقل فوځ جوړ کړ چې شمېر یې ۱۵۰ زرو ته رسیږي ؛ دافوځ به دجنګ حالت کې ددښمن ستراتیجیک اهداف په نښه کوي ؛ عصري وسایل به یې مفلوجوي او په رواني لحاظ به دښمن ته ماتې ورکوي ؛ په ټولې نړۍ کې یو هېواد هم داسې خصوصي فوځ نه لري .

همدا راز یې د۲۰۱۶م کال په جنورۍ کې دلاجسټک سپورټ فورس په نوم هم یو ځانګړي فوځ جوړ کړی چې دجنګ او امن دواړو حالتونو کې فوځ ته دوسلو اوجنګي مهماتو رسول یې مسئولیت دی ؛ همدا فوځ وچې اوس یې په لداخ کې درامنځته شوي جنګي حالت پرمهال په ډېرې تېزۍ خپل فوځ ته وسلې اوجنګي مهمات ورسول.

دچین پورته یادې شوې انقلابي تبدیلۍ که په پام کې ونیول شي نودا ویل به مبالغه نه وي دا هېواد به په راتلونکویو څوکلونو کې که دامریکا سره برابر نه وي نو دامریکا نه پس به دنړۍ ترټولو ستر نظامي ځواک شي .

# له شیخ الحدیث مولوي محمد عمرجان اخندزاده صاحب

## سره د څرک مجلې ځانګړې مرکه

**د څرک مجلې درنو لوستونکو! د هیواد له نومیالیو علماء کرامو او مشایخو سره د علمي، جهادي، ټولنیزو او شخصي مسایلو په اړه د مرکو په لړ کې مو دا ځل له نامتو عالم، شیخ الحدیث، خلیفه حضرت مولانا محمد عمرجان اخندزاده صاحب سره مرکه کړې؛ چې لوستلو ته یې تاسو رابولو.**

**۱ - پوښتنه:** ډېر قدرمن شیخ صاحب! السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

د مرکو د معمول مطابق که شفقت وکړئ لومړی د خپل ژوند مختصر معلومات له درنو لوستونکو سره شریک کړئ، خوشحاله به شو، چې دې فاني دنیا ته مو چیرته او کوم کال سترګې رڼې کړي، ابتدايي، منځنی زدکړې مو چیرته ترلاسه او بالآخره فراغت مو چیرته وشو ؟

**= شیخ صاحب:** الحمدلله الذي خلق الانسان واکرمه، وعلمه البیان واخلفه، والصلوة علی من جعل الله افضل الانبیاء، وامته خیر الامم، وعلی اله واصحابه کاشفی الظلم وبعد.

ستاسو د پوښتنې تر ځواب ویلو مخکې د اسلامي امارت د فرهنګي چارو کمیسون د ټولو غړو او همکارانو منندوی یم چې په دې سختو حالاتو کې مو خپل قلمي جهاد ته په ښه توګه ادامه ورکړې، او خصوصا د څرک مجلې د کارکوونکو څخه ډېره مننه کوم، چې ما ته مو له علماء کرامو سره د مرکو په دې زرینه او ارزښتناکه لړۍ کې ځای راکړ، د ژوند په ټولو چارو کې مو سرلوړي او بریالي غواړم.

د خپل ځان د پیژندني په اړه به دومره درته ووایم: زما نوم محمدعمرجان د مرحوم حضرت مولانا عنایت الله صاحب چې مشهور په اخنداده صاحب غبرګي، زوی او د مرحوم حضرت مولانا عبدالرزاق صاحب لمسی په کال ۱۳۴۴ هـ ش، کې مې د زابل ولایت د شاجوی ولسوالي په غبرګي کلي دې نیمګړې نړۍ ته سترګې وغړولې.

ابتدائي زدکړې مو د والد صاحب تر څارنه لاندې د نوموړي له شاګردانو څخه پیل کړې، له هغه وروسته چې کله د ثور کرغېړن او منحوس انقلاب رامنځته شو، پر افغانستان د کمونستانو واکمني پیل شوه، دیني مدارس او مرکزونه تعطیل شول، نو مې د مرحوم والد صاحب څخه درسونه پیل کړل، ترڅو چې په کال (۱۴۰۴هـ ق) مطابق (۱۳۶۲ هـ ش) کې پاکستان ته په هجرت کولو اړ شو، له هغه نه وروسته مو د هجرت په دیار کې په بېلابېلو مدارسو کې د مروجه فنونو د زدکړو لړۍ پر خپل والد صاحب پای ته ورسوله، په (۱۴۱۱ ه ق) مطابق (۱۳۶۹ ه ش) د دورة الحدیث څخه فارغ شوم، له دستاربندۍ وروسته مې پرته له ځنډه د تدریس لړۍ پیل کړه، چې آن تر اوسه په دې علمي خدمت بوخت یم، په ۱۴۳۴ه ق مدرسه نورالمدارس کې رب متعال د حدیثو د خدمت توفیق راکړ، چې حالاً هم د نبوي احادیثو په همدې چوپړ بوخت یم.

**۲- پوښتنه:** ستاسو د مرحوم والد، استاذکل غبرګي اخندزاده صاحب د علمي، جهادي او اجتماعي ژوند او خدمتونو په اړه هم، که لږ رڼا واچوئ؛ خوشحاله به شو؟

**= شیخ صاحب:** زموږ والد رح یو جهادي، علمي شخصیت او داخلاص یوه نمونه وه، چې هیڅکله یې د طالبانو په روزنه کې کوم تقصیر نه دی کړی، حتی چې د ژوند په اخرنۍ شپېو کې د سختې ناروغۍ په حالت کې هم تر درسګاه ځان رساوه ، او د نزع تر ورځې پورې یې سبق قضاء نه کړ، او والد صیب مرحوم به علماوو ته دا خبره په تکرار سره توصیه کوله چې:

" یو څوک چې خپل خراب ساعت د جوړونې لپاره ساعت ساز ته ورکړي، او هغه یې په جوړولو کې اخلاص ونکړي، ساعت ته یې لا تاوان ورسوي، نو یقیني خبره ده چې دا د مالک د خپګان لامل ګرځي، انسان چې د الله تعالی، مکرم محترم مخلوق دی؛ دا چې کله موږ ته حواله شي، او موږ ورسره د لاپرواهي او بې باکي چلند وکړو، نو متعال رب به دا عمل څومره ناراضه کړي"

نو د همدې اخلاص پایله وه چې زموږ د والد ماجد له شاګردانو څخه با استعداده او د ټولنې په کار خلک جوړ شول، رب متعال دې دا اخلاص قبول او صدقه جاریه وګرځوي، زموږ والد صیب پر ښه علمیت برسېره سیاسي درایت لرونکی جهادي شخصیت هم و، کله چې په ۱۳۵۷ ه ش، کې د نور محمد ترکي د واکمنۍ اعلان وشو، نو ټول شاګردان او متعلقین

يې تنبيه کړل چې دا کس زه پېژنم، دا کمیونسټ دی، نور به هرڅه پربردو، او د جهاد سنگر په تود ساتو، او د کمیونستي رژیم په خلاف يې د خفيه تحرکاتو پيل وکړ، ترڅو چې يې د سيمې خلگ له کورونو څخه د وسلو راغونډولو ته وهڅول، يو جهادي جبهه يې جوړه کړله، او د حکومت هغه عمومي لاره چې سيمې ته راغلې وه، هلته يې خزې (سنگرونه) جوړ کړل، چې آن تر اوسه يې هم آثار شته. زموږ والد صيب چې د خپل فراست او سياسي بصيرت لمخې ډېرې ربښتونې پيشگويانې درلودې، يو له هغو دا وه، چې د جهاد په دوران کې به والد صيب ويل، چې روسان به د ماتې سره مخ شي، او د مجاهدينو جهاد به بريا مومي، د جهاد په صفونو کې طالبان او صالحان به ډېر شهيدان شي، او څه چې پاته شي هغه به بې وسه شي، قدرت به ناپوهو عوامو ته په لاس ورشي، بيا به ملوک الطوائفي او آنارشي پيل شي، نو تر هرڅه مهمه دا ده، چې نوي نسل ته په مفتوحه سيمو کې حجرې او مدرسې جوړې شي، او دا به يې ويل چې طالبانو ته د دې جاهلو قومندانانو په مقابل کې هرو مرو ضرورت پيدا کيږي، نو ځکه يې د ولايت په ټولو ولسواليو کې د حجرو او مدارسو د جوړښت گام واخست، حتی چې گاونډيو ولايتونو ته يې هم سفرونه وکړل، او د والد صيب د خپل اعتبار او رسوخ له امله دا کار ډېر بريالی و ، بالاخر همداسي وشول، چې قومندانانو پاټکونه جوړ کړل، ډول ډول ظلمونه يې شروع کړل، چې بيا له همدې مدارسو څخه طالبان را ووتل، او يو خوځښت پيل شو، او دا اسلامي تحريک اصلا زموږ له ولسوالۍ څخه شروع شو، وروسته له کندهار څخه عمومي تحريک پيل شو.

د والد صيب بله پيشگوئي دا وه، چې د تحريک تر پيل کېدلو يو کال وړاندې د افغانستان د علماؤو په استازولي د افغانستان لپاره د ملل متحد استازی محمود مستري دا پوښتنه وکړه چې: افغانستان ته سوله او آرامي څنگه راتلای شي، د دې پوښتنې د ځواب په اړه والد صيب وويل، چې يوازينی حل لاره دا ده چې: د واک واگې او چارې د افغانستان علماؤو ته وسپارلي شي، ځکه چې د دې هيواد خلگ تر هر چا زيات علماؤو ته معتقد دي، او همداسي وشول چې په ډېر لږ وخت کې د علماؤو په قيادت کې د افغانستان ډېرې سيمې د امارت تر واکمنی لاندې راغلې، حضرت والد صيب د تحريک په ابتداء کې په کندهار، هلمند، زابل، غزني کې تحريک ته د جلب لپاره د برسر اقتدار قومندانانو سره ملاقاتونه کول، بيا څه وخت په کندهار کې د ملي امنيت د رياست پر وظيفه پاتې شو، د کابل له فتحې وروسته يې د سترې محکمې د کفيل په حيث وظيفه ادا کوله، وروسته يې امير المؤمنين ته د يوې لويې جهادي مدرسې جوړولو وړانديز وکړ، چې همدا غوښتنه يې ومنل شوه او مدرسې باندې کار پيل شو، چې حضرت والد صيب د امارت تر سقوطه په همدې مدرسه کې د تعليم او تدريس په چارو بوخت و.

**۳- پوښتنه:** څرنگه چې ستاسو والد مرحوم اخندزاده صاحب، يو بابصيرته عالم او د ټولو خلکو استاذ و؛ نو ستاسي په گډون د خپلو اولادونو او لمسيانو په باب د ده تمنا او ارزو څه وه، چې څنگه زدکړې وکړي او څه ډول شخصيتونه ترې جوړ شي؟

**= شيخ صاحب:** زما والد صيب يوازې خپلو اولادونو ته نه بلکې د هر مسلمان نسل ته يې توجه وه او دا يې د زړه هيله وه چې د مسلمان بچی بايد يو با استعداده شخصيت وي، جاه طلبه، عيش پرست نه وي، له غربت سره اشنا وي قُوت لايمُوت د ځان لپار کافي وگڼي، له بې گټې اختلافاتو، بې ځايه مناظرو څخه ډډه وکړي او ځان په ديني زدکړه او تربيه باندې بوخت وساتي.

**۴- پوښتنه:** که د خپلو څو تنو هغو استادانو نومونه راته واخلئ چې پوهيږی علمي فيض او برکت مو زيات ورڅخه اخيستی دی او د هغوی خلوص او لوړبيني مو اوس هم په زړه او ذهن کې نقش دي ؟

**= شيخ صاحب:** زما د ظاهري علومو استاذ يواځې خپل والد صيب و. د طريقت او تصوف مربي مې حضرت شيخ المشايخ رحمه الله دی چې د کستيم په خليفه صيب مشهور و او ده راته د طريقت اجازه کړې ده، نو څه چې راته فيض شوي او يا مو څه زده او زدکړې دي له همدې دوو استاذانو څخه مې اخذ کړې دي .

**۵- پوښتنه:** د تدريس په اړه که راته ووايی، تدريس مو تر فراغت وړاندې پيل کړی او که وروسته؟ ويل کيږي چې شاگردان مو له درس ويلو ډېر خوشحاله دي، نو د دې کامياب تدريس راز مو په څه کې وو (مطالعه ، د استاذانو دعاگاني او که بل څه) ؟!

**= شيخ صاحب:** بايد ووايم چې، تر فراغت وړاندې مې هم د خپلو زدکړو تر څنگ څه نا څه تدريس کاوه. خو د تدريس په ډگر کې مې د بريا مهم لامل دعاوې وې، کله چې فارغ شوم پر خپل ځان مې د درس کولو باور کم و خو ډېرې دعاگانې به مې کولې چې لوی رب راته د ښه تدريس کولو توفيق راکړي او الله تعالی مې همدا دعاوې قبولې کړې.

دوهم آساسي لامل يې، زه فکر کوم دا و چې: دا يو منلی شوی حقيقت دی چې اولاد ته د پلار تگلاره تر هر څه خوښه او مهمه وي دا چې زما والد صيب د تدريس په ميدان کې نه سترې کېدونکې هلې ځلې او اخلاص کاوه، د ده دا عمل د دې لامل شو چې زه يې ښې مطالعې ته وهڅولم او د تدريس سره مې بې کچې مينه پيدا شوه چې له امله يې تکړه شاگردان پرې راغونډ شو.

**۶- پوښتنه:** د دارالعلوم ديوبند اړوند وفاقي مدرسو او جامعاتو، د فنونو ډېری کتابونه له نصابه ايستلي، دوی وايي چې د منطقو، فلسفي او نورو

فنونو ځيني کتابونو لوستل په موجوده وخت کې بې ګټې دي، وخت ضايع کوي، په دې اړه ستاسي نظر څه دی؟

**= شيخ صاحب:** د وفاق المدارس نصابِ تعليم، د سترو شيوخو او تکړه علماوو د فکر په پايله کې مختصر شوی دی، کېدای شي چې ډېر مصالح پکې نغښتي وي خو تر څنګ يې ځيني تاوانونه هم کړي دي، هغه دا چې په پخواني نصابِ تعليم کې د بېلا بېلو فنونو ګران کتابونه شامل وو چې په لوستلو سره يې د زدکوونکو استعدادونه او صلاحيتونه قوي کېدل يعنې د پخواني نصابِ تعليم فارغ التحصيل بـه دا صلاحيت درلـود چې قـوي تصنيف وکړي، پخوانی عربي فتاواوې، تفاسير مطالعه او ښه ګټه تـرې واخلي. مګر اوسني نصابِ تعليم، زدکوونکي د اذهـانو لـه پلـوه کمـزوري کړل، د هغوی استعدادونه يې متحرک نشوای کړای چې له امله يې د نوي نصاب فارغ التحصيل لـه عـربي فتـاواوو او تفاسـيرو کماحقـه ګټـه نشي-اخيستلای، فقط د معاصرو علماوو څخه او يا پخپله مورنی ژبه ليکل شويو کتابونو او رسالو څخه استفاده کوي، چې د لاسرسي چاره هم نن سبا ښه ورته آسانه شوې، نتيجه يې دا شوه چې د فتوا ورکولو پـه ميـدان کـې نـن سبا يو قسم ګډوډي ترسـترګو کيـږي، څکـه چـې زيـاتره مسـايل پرتـه لـه تحقيقه بيانيږي.

**۷- پوښتنه:** هرکـال زرګونـه علـمای کـرام لـه مدارسـو فـارغيږي خـو د تدريس او تألیف ميدان ته ډېر لږ خلک تياريږي؛ آيا تاسې دغه کار علمي انحطاط نه ګڼئ؟ او د نقص ځای يې چيرته وينی؟

**= شيخ صاحب:** هـو! دا سـل سلنه علمـي انحطـاط او تنـزل دی د دې ناخوالې يو لامل ته مو وړاندې هم اشاره وکړه چې اوسني فارغ شوي علماء ډېر کمزوري دي او دا طبعي خبره ده چې کوم کس په يو کار کې کمزوری وي نو له هغه کار سره يې شوق او رغبت هم کم وي.

فکـر کـوم بـل لامـل يـې دا دی چـې: اوس د پخـوا پـه پرتلـه مصـارف، خواهشات او اړتياوې ډېرې شوې چې د امامت او مدرسـې پـه تنخـوا او معاش هغه نه شي پوره کېدلای، څکه خو نوي علماء د تـدريس او امامت پر ځای نورو دنيوي کارونو ته لاس اچوي.

**۸- پوښتنه:** د خپلو تجربو په رڼا کې د اوس دور طالب العلمانو تـه مـو نصائح څه دي؛ چې څنګه له وخت څخه کماحقه استفاده وکـړای شي؟ او څنګه له نامطلوبو عقايدو، نظريـاتو او د مخربـو کتـابونو لـه مطـالعې څخـه ځان وساتلای شي.؟

**= شيخ صاحب**: دا چې وخت په ټولو نعمتونو کې ستر نعمت دی څکه چې هر ډول قيمتي شی د وخت په وسيله لاس ته راتلای شي خو د نـړۍ په هيڅ قيمت او څېز وخت نه شي تر لاسه کېدلای.

که موږ د خپلو اسلافو تاريخ وګورو نو پوه به شو چې هغوی څومره د وخت قدر کاوه او څومره ګټه يـې تـرې اخيسـتې د بيلګـې پـه ډول: علامـه عبد الحی لکنوي رحمه الله په ۳۹ کلنۍ کې وفـات شـوی او ده لـه همـدې لنډ عمر نه دومره ستره ګټه اخيستې چې علماء د ده اړوند وايې چې: کـه د ده د تصنيفاتو پاڼې د ده د عمر پر ورځو ووېشل شي نو پاڼې به يې د عمر تـر ورځو ډېرې شي. همدا ډول نور علما د ده په شان حيرانووکي داستانونه او تاريخونه لري.

امام ثوري رحمه الله د وخت اړوند وايي چې: "من لعب عمره ضيع ايام حرثه و من ضيع ايام حرثه ندم ايام حصاده " او امام حسن بصري رحمه الله وايي: "يا ابن آدم انما انت ايام فاذا ذهب يوم ذهب بعضک "

حضـرت امـا شـافعي رحمـه اللـه فرمـايي: د صـوفياء کرامـو لـه مجلـس او صحبت نه مې دوې خبرې زده کړې: چې يوه يې دا ده: "الوقت سيف فان لم تقطعه قطعک " پـه اوسـني وخـت کـې د دې قيمتـي او سـتر نعمـت د ضياع مهم لامل ځيـرک موبايلونـه دي، کـه چيـرې زدکـوونکي د زدکـړو پـر مهال د ځيرک موبايل له کارولو ډډه وکړي نو د خپـل عمـر ډېـرې ورځـې او شيبې به يـې لـه ضـياع نـه ژغـورلې وي او پـه دې برخـه کـې د مدارسـو د منتظمينـو ځـانګړې پـاملرنې تـه اړتيـا ده.د خوالـه رسـنيو لـه پراختيـا سره جوخت د باطلو عقايدو، پوچو افکارو او تخريبي کتابونو يـو سيلاب هـم را مات شو چې له امله يې ځوان کهول ورسره واخيست او فکراً يـې يرغمـل کړ.

زه ګمان کوم د دې ناخوالې د مخنيوی ځينې حللارې دا دي چې:

۱- ځوانان دې په خواله رسنيو کې د بې دينو او لا مذهبه خلګو له صحبت او ملګری نه لاس واخلي څکه کله چې اذهان خام او خـالي وي نـو ژر نـور فکرونه قبلوي او ترې متاثره کيږي.

۲- ځوانان دي د ملحدينو او مسلمان مبارزينو تر منځ مناظرې او مباحث نه ګوري څکه ځوانـان ذهنـاً خـام دي او کيـدای شي چـې د بحث پـر مهـال مخالفې خبرې پرې اغېز وکړي. او نه دي د فروعي مسايلو اړوند منـاظرې ځاري څکه داسې مناظرې ډېرې ټولنيزې ستونزې زيږوي او بايد د داسې مناظرو او بې ځايه مباحثو پر کنټرول جدي غور وکړل شي.

۳- ځوان کهول دې د ستر پيغمبر صلی الله عليـه وسـلم او صـحابه کرامـو سيرت په دوامداره توګه مطالعه کوي او تل بايد اسلامي تاريخ او د اسلافو د شخصيت او کردار تاريخونه مطالعه کړي چې لـه املـه بـه يـې لـه خپلـو اسلافو سره معنوي تعلق برقراره پاته وي.

۴- له خپلو اوسـنيو اکـابرو او اسـتاذانو سره دې اړيکـې وسـاتي، د هغـوی مجلسـونو تـه دې ورځـي او لـه هغـوی څخـه دې د توصـيو او سپارښـتنو غوښتنه کوي.

**۹ - پوښتنه:** که د خپلو تألیفاتو په اړه هم څه راته ووياست، آيا تاسو د تدريس ترڅنګ کوم تأليفات هم کړي کنه، او که وي هغه کوم کتابونه مو ليکلي؟

**= شیخ صاحب:** متاسفانه چې د ډېرو بوختياوو او مشاغلو له امله مې د تاليف او تصنيف لپاره ډېر وخت نه دی پيدا کړی خو بيا هم ځينې لانديني ناچاپ شوي اثار لرم.

۱: فضل من الله شرح کنديا ۲: احسن التحقيقات فی اثبات الكواكب تحت السموات ۳: تحفة الاناث في مسائل الحيض والنفاس. ۴: قلة البضاعة فی مسائل الرضاعة . ۵: الحواشي علی مسلم الثبوت ۶:البضاعة المزجات فی اصلاح التجارات.

**۹ - پوښتنه:** ستاسي په اند علمای کرام د تاليف او ترجمې برخې ته بايد څومره وخت ورکړي، ستاسي په نظر دا کار څومره مهم دی؟

**= شیخ صاحب:** زه فکر کوم چې علماء کرام بايد تر تاليف او تصنيف ډېره توجه تدريس او تعليم ته وکړي خو بايد په څنګ کې ورسره د تاليف او ترجمې کار هم په معياري او کره ډول وشي نه داسې لکه نن سبا چې ډېری کتابونه او ژباړې د تجارت په موخه ليکل کيږي او هيڅ علمي معيار او تحقيقي مقام نه لري.

**۱۰ - پوښتنه:** عصري علومو ته په کوم نظر ګورئ، په ټولنه کې د هغوی اړتيا څومره محسوسوئ، يو طالب العلم چې د عصري پوهې کمال هم له ځان سره ولري؛ ديني خدمات يې څومره مؤثر واقع کيدلای شی.؟

همدا رنګه د يو ډاکتر، انجنير او معلم لپاره چې په ټولني کې د خدمت ښه مصدر وګرځي؛ ديني زدکړو ته څومره اړتيا لري؟

په آخر کې که د څرک مجلي او په مجموع کې د فرهنګي کميسون کارکوونکو ته د فرهنګي اومطبوعاتي امورو د نور پرمختګ په باب څه مشوري او لاربښووني ولرئ؛ مهرباني به مو وي.؟!

**= شیخ صاحب:** د دې پوښتنې ځواب خو ډېر تفصيل ته اړتيا لري، کېدای شي چې د مجلې تر ظرفيت لوړ وي، خو په لنډ ډول به داسې ووايم چې: د عصري علومو او فنونو زدکړه ډېره اړينه ده ځکه چې: د هر ملت د بريا او پرمختګ لپاره اقتصادپوهانو، ساينسپوهانو، انجينرانو، سياست پوهانو او نورو معاصرو کمالدارو کسانو ته اړتيا ده خو که نن سبا موږ په اسلامي او نوره نړۍ کې د عصري زدکړو ادارو او مرکزونو ته دقت وکړو نو هغوی ټول د غربي کلتور او فکر تر چتر لاندې تنظيم شوي دي چې په پايله کې يې چې کله زموږ مسلمان ځوانان د زدکړو لپاره سر وردننه کړي نو له هغې ځوا نه چې راووځي د يو معاصر پوه، ډاکتر، ساينسپوه او سياست پوه پرځای د اسلامي عقايدو منتقد او د غربي افکارو او کلتور ترويجوونکی ترې جوړ شوی وي، ځکه خو لکه څنګه چې اسلامي ټولنه معاصرو علومو ته اړتيا لري همداسې د دې علومو لپاره يو سالم نصابِ تعليم، مناسب چاپيريال او ښه مديريت ته اړتيا ده ترڅو موږ ته يو داسې معاصر محصل تربيه کړي چې هم يې عصري فنون زده او هم د اسلامي تهذيب او ارزښتونو منونکی او يو سوچه متدين ځوان وي.

او بل پلو که نن موږ او تاسو دې ته وګورو ، کله چې مخالفين اسلامي عقايد او افکار ننګوي نو ټوله تکيه يې پر ساينس او نورو عصري علومو باندې وي ځکه خو موږ بايد په دې برخه کې خلګ ولرو چې اسلامي عقايد او افکار له چيلنجونو وژغوري او مخالفينو ته د هغوی په ژبه ځواب ووايي. لکه: کله چې پخوا اسلامي عقايد د يوناني علومو او فلسفې په مټ تر ګوزار لاندې وو نو اسلامي مفکرينو، علماوو د دې لپاره چې د اسلامي عقايدو او نظرياتو خلاف د دوی د ننګونو مخه ونيسي نو يې نصاب تعليم ته عقلي او فلسفي فنون ور زيات کړل او د علم الكلام بنسټ يې کېښود .

**۱۱ - پوښتنه:** په آخر کې که د څرک مجلي او په مجموع کې د فرهنګي کميسون کارکوونکو ته د فرهنګي اومطبوعاتي امورو د نور پرمختګ په باب څه مشوري او لاربښووني ولرئ؛ مهرباني به مو وي.؟!

**= شیخ صاحب:** د اسلامي امارت د فرهنګي چارو کميسون کار کوونکو ته دا ويل غواړم چې: الله تعالی تاسو ته د علم د خپراوي تر څنګ د قلمي جهاد موقع درکړې ده او ستا په لاس کې چې کوم قلم دی دا ډېر لوړ او عظيم مقام لري ځکه الله تعالی پخپل کتاب کې پرې قسم خوړلی او الله تعالی چې په کوم شي قسم واخلي په دې کې د هغه شي عظمت ته اشاره وي.

د قلم د ګټو د کثرت اړوند که ووايو چې د توري په وسيله چې څومره کفارو د جهالت او کفر له تيارو خلاصون موندلی، تر دې ډېر خلګ د قلم د زرينو کرښو په وسيله د جهالت له تورو تيارو څخه راوتلي دي، نو دا به له حقيقته لري نه وي. لهذا له تاسو نه مو غوښتنه دا ده چې: د لوی رب شکر وباسئ او په دې عظيم جهاد کې مو نيتونه يوازې د الله تعالی رضا وګرځوئ!

او د ليکنو او مقالو په ليکنو کې ډېر احتياط او دقت کوئ ځکه علماوو ليکلي چې: د قلم غيبت، د قلم دروغ، په قلم د يو چا ځورونه او داسې نور ګناهونه چې د قلم په وسيله سره تر سره کيږي؛ د ژبې تر ګناهونو سخت او لوی دي، ځکه چې د قلم ګناهونه د ژبې په نسبت اوږد مهالي وي او همداسې په ليکنو او قلمي جهاد کې پوره هڅه کوئ چې د قلم له څوکې مو نفرتونه خپاره نه شي بلکې دې ته مو بايد جدي توجه وي چې مينه ورورلي خپره کړئ او خلګ پر ځانونو راغونډ او جلب کړئ.

وفقکم الله لما يحب ويرضی.

پای ......

ليکنه .....ظهورالحق رحيمي

# ښځينه مرستيالاني او شريعت

نحمده ونصلی علی رسوله الکريم:

امّابعد ـ دکابل ناکامه او بل واکه اداره لله الحمد ورځ تربلې خپلې ماتي ته متوجه کيږي او لاره تری خطاء کيږي کله يوطرفه ته خپی وهې کله بل طرف ته لکه ذبح کړی چرګ داچې باداران يې دوتلو په حالت کې دي نو دوی دخپلو بادارانود پاته کيدو او دمذاکراتو دبهير دناکامه کيدولپاره قسم قسم حربی اختياروې کله په بی ګناه هيواد والو اوددوی په ګنجونو باندې توغندی واروي اوکله کله د بی ګناه وګړو کورونه بمباروې اوکله دمظلومو بند يانو ازادې ځنډوې دکوم له کبله چې سپيڅلې مذاکرات زيانمن کيږي

دا ټول ددی لپار ترڅوبيا دمظلوم اولس وينه توی اوخپلی شخصی ګټې يې ورغوې خو لله الحمد هيواد وال مو هوښيار اوورته متوجه دی او داسلامی امارت مجاهدين ددوی هرناوړه پلان په وخت شنډوي ....

ددی حربو په سلسله کې اجير اودوه سرې حکومت يوه بله لار خپل کړې کوم چې نه شرعي اړخ لرې اونه عقلې اونه هم افغانيت ته دمنلو وړ دی .

هغه د هر ولايت دمفسدو واليانو دپاره ښځينه مرستياليانې ټاکل دي.

ديادونې وړده څو ورځې مخکې ددوی په اړه دهمجنس بازی يو راپور بی .بی .سی هم جوړ کړی وو.

داچې په دی ورځوکې دښځو دواکمنی په اړه بحثونه ګرم دي نو راځو ددی شرعي اړخ وګورو چې ايا په شريعت کې دښځينه واکمنی څه حيثيت دی په دی اګرچې دقرآن سنت اواجماع امت احکامات واضح دې ليکن يو څه خلک ددی باوجود ديته دجواز ددلائلو موندلو کوشش کوې ترڅو خپل مغربي بادارن خوشحاله اودهغوی دتهذيب پيروي وکړي...

په اسلام کې دهری مسئلی دثبوت لپاره څلور اصول ددليل په طور استعماليږي (۱) قرآن کريم (۲) حديث نبوی ص (۳) اجماع دامت (۴) اجتهاد اوقياس.

(۱): ): قران کريم الله ج په قرآن کريم کې په ډيرو ځايونو کې د نارينه اودښځې په مينځ دحقوقو اودفرائضو ويش واضح کړی ـ دواکمنی تصور په اسلام کې دخلافت دی اوپه انسانې معاشره کې واکمن خودمختاره نه وي بلکه واکمنې دالله ج نيابت وې چي کله دانبياؤ عليهم السلام سلسله دبعثت جاري شوه نودامنصب ددوی سره وو په دی هکله دبخاري شريف په کتاب الامارة کې دابوهريره رض څخه يو روايت رانقل شوی دی ـ چې په بنی اسرائيلو کې دسياسې قيادت فريضه پيغمبرانو ع په مخ وړله چې کله يو نبی تللو نوبل به دهغه په ځای راتلی ليکن زما نه وروسته کوم يونبی نشته البته زما نه وروسته خلفآء راځي ـ نوپه دی دنيا کي چې څومره پيغمبران راغلې نارينه وه ـ دالله ج يوقول دی وَمَا ارسلْنا من قبلک الارجالاً نوحی اليهم ـ

**یعنې موږ ستا نه وړاندي رسول نه دی لیږلی مګرصرف نارینه دي کومو ته چې موږ وحی لیږو...**

**دوهم ایت: الّرجال قوّامون علی النساء بمافضّل اللّه بعضهم علی بعضٍ ـ یعنـې نارینـه واکمـن دي پـه ښـځو بانـدي ځکه چې الله ج بعضوته په بعضو فضیلت ورکړی .**

**(۲) : حدیث نبوی ص همدارنګه خوږ نبي حضوراکرم ص په خپل ډیرو ارشاداتوکې ددی خبرې وضاحت کـړی چـې دښځې واکمني صرف هلاکت اوناکامې نه ده البته دنارینه دپاره بدترین مرګ دی ـ**

**امام بخارې رح کتاب المغـازی کـې دحضـرت ابـوبکر رض څخـه رانقـل کـړي کلـه چـې حضـور ص دفـارس خلکـو تـه خبرورکړ هغه وخت چې دوی دکسری لور خپله واکمنه ټاکلي وه.**

**لَن یّفلح قوم وّلَوْ امرهم امرأة ـ یعنې هغه قوم هیڅکله نه کامیابیږي چاچې خپله واکمنه ښځه جوړه کړه.**

**بل حدیث مبارک دی: هلکتِ الرّجال حِین اَطاعتِ النّساء (مستدرک حاکم ج ۴ص ۲۹۱)**

**یعنې چې سړی کله دښځې طاعت قبول کړې نوپه هلاکت کې غورځیږي ـ**

**بل حدیث دی: لایُقدس الله اُمة قادتهم امرأة (مجمع الزوائدج۵ص۲۱۰) الله ج هغـه قـوم تـه پـاکیزګې نـه ورکـوي دچاچې قیادت ښځه کوي ـ**

**(۳) : دامت اجماع دخلفاؤ راشیدینو ددور څخه ترنن پـوري دامـت مسـلمه اجماعـي تعامـل پـه دی دی چـې ښـځه دمسلمانانو په هیڅ یوه خطّه کې واکمنه مه جوړه وی په دی باره کې دامت لویو هستیو اقوال.**

**امام شاه ولی الله دهلوی رح: اجمع المسلمون علیه (حجة الله البالغة ج۲ ص۱۴۹)**

**(۴)اجتهاد اوقیـاس: پـه شریعـت کـې څلورمـه درجـه دقیـاس اواجتهـاد ده ددی اصـل اګرکـه پـه پـه غیرمنصوصـی دمسائلو دی لیکن ددی اجازه حضور اکرم ص کړی ده ـ**

**اجتهاد فقه حنفی: لایصح تقریر المراة وی وظیفة الامامة (شامی ج ۴ ص۳۹۵ج ۱ص ۵۱۲)**

**فقه شافعی: القضاء لایجوز لامراة ـ فقه حنبلی: المراة لاتصلح للامامة ولالتولیـة البلـدان ولهـذا لم یـول النبـی ص ولااحدمن خلفاء الخ ... فقه مالکی: فیشترط فیه العدالة والذکورة والفطنة والعلم ـ**

**اهل حدیث: فیه دلیل علی ان لمراة لیست من اهل الولایات ولایحل لقوم تولیتها (نیل الاوطارج۸ ص۲۸۴)**

**ددی دومره دلائلو مخالفت کوې صرف دمغرب دتقلید لپاره ..و ما علینا الا البلغ**

## جالبه

د انسان په معده کې هر ډول خوراک هضم کیږي، لکن معده پخپله نه هضم کیږي، ځکه چې په معده کې الله جل جلاله د (میوکس) Miucus نظام تخلیق کړی، یعنې په معده stomach کې داسې قدرتي تیزاب شته چې هغه فقط خوراک هضم کوي.

له هغه تیزابو څخه خپل وجود ژغورلو لپاره معده له درې ورځو وروسته نوی نوی پوټکی (استر) پخپله جوړوي او خپل سابقه استر ضایع کوي.دا ده هغه رب حکمتونو دي چې د (کن فیکون) تر منشاء لاندې داسې عجیبه نظامونه تخلیق کوي.

هَٰذَا خَلْقُ اللَّهِ فَأَرُونِي مَاذَا خَلَقَ الَّذِينَ مِن دُونِهِ



# د امام صاحب نه مخکې خلک د چا په مذهب وو!

دځلورو امامانو څخه چې کوم خلك مخکې تېرشوي دي يا دامام ابوحنيفه رحمه الله څخه مخکې خلك دچا په مذهب وو؟ يعنې صحابه رضی الله عنهم دچا په مذهب وو؟

جواب:

داسوال هم په اصل کې شيعه ګانو اومنکرينو دحديثونوکړی وو.

منکرين دحديثو وائي چې دصحابه وو اودتابعينو په زمانه کې خو بخاري، مسلم، ترمذي وغيره نه وو نوهغوئ په څه شي عمل کولو؟

(۲) جواب : دصحابه وو تعداد له سلو زرو (۱۰۰۰۰۰)څخه زيات وو، شاولي الله رحمه الله فرمايي: چې دا ټول صحابه دوه ډلې وو، يوه ډله دمجتهدينو وه بله ډله دمقلدينو وه، دابن القيم په قول مجتهدين اصحاب كرام پكې يوسل او نه څلوېښت (۱٤۹) وو، باقي ټول مقلدين وو.

بيا دا مجتهدين درې ډلې وو:

(۱) مكثرين: يعنې هغه صحابه چې ډېرې فتوې به يې وركولې ددوي تعداد شپږ (۶) دی:

حضرت علی، حضرت عبدالله بن مسعود ،حضرت عمر ،حضرت زيدبن ثابت، حضرت ابو الدرداء ،حضرت ابی بن كعب رضی الله عنهم اجمعين .

(۲) متوسطين: يعنې هغه صحابه چې درميانه فتوې به يې وركولې، ددې صحابه وو تعداد شل (۲۰) وو.

(۳) مقللين: يعنې هغه صحابه چې لږې فتوې به يې وركولې ددې صحابه وو تعداد يوسل اودرويشت (۱۲۳) وو.

ددې صحابه وو په زرګونو فتوې

په مصنف عبدالرزاق ،تهذيب الاثار، اومعانی الاثار وغيره كتابونو كې ذكر دي.

يواځې په مصنف عبدالرزاق كې تقريباًاويا زره فتوې دي، مقلدينو صحابه وو به پوښتنه كوله او مجتهدينو صحابه وو به جواب وركولو، نه به مستفتي مطالبه ددليل كوله اونه به مفتي ورته دمسئلې سره دليل ذكر كولو صرف په دې اعتماد به منل كېده چې پدې مسئله دمفتی سره دليل شته چې همدې ته تقليد وايي، نو يواځې په مصنف عبدالرزاق كې د تقليد اويا زره (۷۰۰۰۰) دلائل دي.

ددغه مجهتدينو صحابه وو په باره كې شاه ولي الله رحمه الله فرمائي:

ثُمَّ اِنَّهُمْ تَفَرَّقُوْافِي الْبِلَادِ وصَارَكُلُّ وَاحِدٍ مُقْتَدٰي نَاحِيَةٍ مِنَ النَّوَاحِيْ

يعنې بيا دغه مجتهدين صحابه رضی الله عنهم په مختلفو وطنونو كې خپاره شول او دهرې علاقې خلكو ديو يو صحابي تقليد شروع كړو .

۱. دمكې مكرمې صحابه كرامو اوتابعينو به دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما تقليد شخصي كولو، دده معمول داوو چې اول به يې په قرآن فيصله كوله، كه هلته به يې مسئله پيدا نكړه نو بيا به يئ په سنت درسول الله فيصله كوله، كه په سنت كې به هم پيدانه شوه نو بيا به يئ دحضرت ابوبكر اوعمر رضی الله عنهما په فيصلو باندې فيصله كوله اوكه دهغوئ فيصله به هم پيدانشوه نو په اخركې به ئې په خپله رائه او اجتهاد باندې فيصله كوله .

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما ډيری فتوې په مصنف عبدالرزاق اوپه مصنف ابن ابی شيبه كې ذكر دي مطالبه ددليل ورسره نده ذكر چې همدې ته تقليدوايي.

دمدينې منورې صحابه كرامو او تابعينو به دحضرت زيدبن ثابت> تقليد شخصي كولو حتی چې اهل مدينه وو به عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ته فرمايل: لَانَاْخُذُ بِقَوْلِكَ وَنَدَعُ قَوْلَ زَيْدٍ

يعنې ستا دقول په مقابل كې مونږ دزيد > قول نه پرېږدو، دوي مكمل دزيد بن ثابت> تقليدشخصي كولو، شارحين ددې په ترجمه كې ليكي چې :

لَانُتَابِعُكَ يَابْنَ عَبَّاسٍ وَاَنْتَ تُخَالِفُ زَيْداً اوچې کله به يې فتوى ورکوله نو دقرآن اود حديث څخه به چې ثبوت پيدانشو نو فرمايل به يې: اِنَّمَا اَقُوْلُ بِرَائِيْ

۳. ديمن صحابه ؤ او تابعينو به دمعاذ > تقليد شخصي کولو.

٤. دبصرې صحابه وو؟ او تابعينو به دانس> تقليد شخصي کولو.

٥. دکوفې خلکو به دعبدالله بن مسعود تقليد شخصي کولو، دعبدالله بن مسعود > منشور داوو: فَمَنْ عَرَضَ لَه مِنْكُمْ قَضَاءً فَلْيَقْضِ بِمَا فِيْ كِتَابِ اللهِ فِاِنْ جَاءَ اَمْرٌ لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللهِ فَلْيَقْضِ بِمَا قَضى بِهِ نَبِيُّهُ فَاِنْ جَاءَ اَمْرٌ لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللهِ وَلَاقَضى بِهِ نَبِيُّهُ فَلْيَقْضِ بِمَا قَضَى بِهِ الصَّالِحُوْنَ، فِاِنْ جَاءَ اَمْرٌلَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللهِ وَلَاقَضى بِهِ نَبِيُّهُ. وَلَاقَضى بِهِ الصَّالِحُوْنَ فَلْيَجْتَهِدْ بِرَاْيِه (والحديث جيد)

د دارمي الفاظ داسې دي:

٦. فَاِنْ لَمْ يَكُنْ فِيْمَا اجْتَمَعَ عَلَيْهِ الْمُسْلِمُوْنَ فَاجْتَهِدْ بِرَأْيِكَ (ج۱ ص۶۱).

وَعَنْ ابْنِ مَسْعُوْد> اِنَّهُ قَالَ فِيْ غَيْرِ مَا مسئلة اَقُوْلُ فِيْه بِرَأْيِ .

يعنې اول فيصله په کتاب الله ده، بيا په سنت الرسول ده، بيا په اجماع دصحابه وو ده، که په دې کې پيدانشوه بيا حکم اوفيصله په خپل اجتهاد ده. نو درسول الله • څخه وروسته ددغو صحابه وو تقليد کېدلو د صحابه وو رضی الله عنهم څخه وروسته دتابعينو زمانه شوه. شاه ولی الله رحمه الله فرمايي:فَعِنْدَ ذٰلِكَ صَارَ لِكُلِّ عَالِمٍ مِنَ التَّابِعِيْنَ مَذْهَبٌ عَلى حِيَالِه فَانْتَصَبَ فِي كُلِّ بَلَدٍ اِمَامٌ .

يعنې هرتابعي عالم ځانته مذهب جوړ کړو اوپه هرښار کې يو يو تابعي عالم امام جوړ شو. صدر الائمه مکي فرمايي: چې يوه ورځ حضرت عطاء رحمه الله دخليفه هشام بن عبدالملك په خدمت کې حاضر شوخليفه ترېنه پوښتنه وکړه، چې ته داسلامي ښارونو امامان پېژنې؟ حضرت عطاء رحمه الله وويل هو!

۱. دمدينې منورې دخلکو امام حضرت نافع رح دی.

۲. دمکې مکرمې دخلکو امام حضرت عطاء رح دی .

۳. ديمن دخلکوامام حضرت طاوس رح دی.

٤. ديمامې دخلکو امام يحيى ابن کثير رح دی.

٥. دشام دخلکو امام حضرت مکحول رح دی.

٦. دعراق دخلکو امام حضرت ميمون بن مهران رح دی.

۷. دخراسان دخلکو امام حضرت ضحاك بن مزاحم رح دی.

۸. دبصرې دخلکو امام حضرت حسن بصري رح دی.

۹. دکوفې دخلکو امام حضرت ابراهيم نخعي رح دی..

نوهېڅ دور په تاريخ داسلام کې داسې ندي تېرشوي چې صرف يوکس دې په کې غير مقلد وي.

امام غزالي رح فرمايي:په تقليد باندې دټولو صحابه وو اجماع ده ، اود صحابه وو په دور کې دا په تواتر ثابت وو .

شاه ولي الله رح دشيخ عزالدين بن سلام رح څخه نقل کوي:

اَنَّ النَّاسَ لَمْ يَزَالُوْ عَنْ زَمَنِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ اِلَى اَنْ ظَهَرَتِ الْمَذَاهِبُ الاَرْبَعَة يُقَلِّدُوْنَ مَنْ اِتَّفَقَ مِنَ الْعُلَمَاءِ مِنْ غَيْرِ نَكِيْرٍ مِنْ اَحَدٍ يعْتَبَرُ اِنْكَارُهُ وَلَوْكَانَ ذٰلِكَ بَاطِلاً لَاَنْكَرُوْهُ .

بيا فرمايي:فَهَذَا كَيْفَ يُنْكِرُهُ مَعَ اَنَّ الاِسْتِفْتَاءَ لَمْ يَزَلْ بِيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ مِنْ عَهْدِالنَّبِيِّ • وَلَافَرْقَ بِيْنَ اَنْ يَّسْتَفْتَى هَذَا دَائِمًا وَيَسْتَفْتَى هَذَا حِيْناً بَعَدَ اَنْ يَّكُوْنَ مَجْمَعٌ عَلَى مَاذَكَرْنَا.

يعنې تقليد دصحابه وو رض د دور څخه شروع دی، (اودهغه وخت څخه تر شاه ولی الله رحمه الله پورې هېڅ غير مقلد نه وو) بيادې څلورو امامانو دصحابه؟ وو او د تابعينو رحمهم الله فتوې راجمع او مدونې يې کړې. اوترتيب يې ورکړو او په بعضو ځايونو کې يې خپل اجتهاد وکړو.

له دې وجهې ټول خلك په دې څلورو مذهبونو کې داخل شول.

لکه احاديث چې دصحابه وو او دتابعينو په دور کې وو لېکن بخاري اومسلم وغيره کتابونه نه وو. بيا

ورروسته امام بخاری، مسلم، وغیره دااحادیث مرتب کړه لدې وجهې ورته دبخاري ، مسلم، ترمذي وغیره حدیث وایي حالانکه دصحابه کرامو؟ اودتابعینو په وخت کې نه بخاري وه نه مسلم اونه نور، نو همداشان دڅلورو مذهبونو مسائل وو لیکن مرتب نه وو .بیا امام صاحب وغیره مجتهدینو مرتب کړل له دې وجې دې امامانو ته منسوبیږي.

**مصادر ومراجع:**


- حاکم فی معرفة علوم الحدیث ص ۱۹۸، مناقب موافق ج۱ص۷ .
- الانصاف ص۷
- شذرات الذهب لابن العماد ص۱۴۸ج۱.
- جامع بیان العلم ج۲ص۵۲، طبقات ابن سعد ج۳ص ۱۳۶.
- جامع بیان العلم ج۲ ص۵۶ او۵۷ او۵۸ او۵۹. باب اجتهاد الرأی علی الاصول ص- ۸٤٦ دار ابن الجوزي.
- اعلام الموقعین ج۱ ص۷.( فضل عمر بن الخطاب)
- اعلام الموقعین ج۱ ص۷
- اعلام الموقعین ج۱ ص۸ (فضل ابن عباس)
- جامع بیان العلم ج۲ص۶۱وص۶۴
- تذکرة الحفاظ ج ۱ / ص ۷۴ داراحیاء التراث العربی
- تذکرة الحافظ ج ۱/ ۷۸ داراحیاء التراث العربی
- تذکرة الحافظ ج ۱ / ص ۱۷۴ داراحیاء التراث العربی
- اعلام الموقعین فصل فضل عمربن الخطاب ج ۱ / ص ۲۷.
-اعلام الموقعین فصل الصحابة الذین انتشرعنهم الدین ج ۱ / ص ۳۰.
- مجموعة الفتاوی ج ۳۲/ ص ۶۶ مکتبة العبیکان
-شرح المذهب فصل فی اداب المستفتی ج ۱ / ص ۸۸ دارالفکر بیروت
- حاشیه حسن المساعي ص۶۹.
- الاحکام فی اصول الاحکام ج ۴ / ص ۱۹۸ مؤسسة الحلبی القاهره
- ج۱ص ۴۸ او۵۳۲.
- قرة العینین ص ۲۵۱.
- طبقات ابن سعد ج ۲ ص۵۲
- الانصاف ص۳
- دارمي ج۱ ص ۵۹ ،مستدرك وقال الحاکم صحیح ج۱ ص ۳۴۰ دارمي ج۱ ص ۵۹، سنن بیهقي ج۱ص۲۲۵، جامع بیان العلم ص۵۷، ۵۸ ج ۲.
- بخاري ج۱ ص۲۳۷
- عمدة القاري ج۴ ص ۴۷۷ فتح الباري ج۳ ص ۴۶۳ .
- جامع بیان العلم ج۲ص ۵۸. بیهقي ج۱ص ۱۵۵.
- نسائی ص ۲۶۴ باب الحکم باتفاق اهل العلم .- جامع بیان العلم ج۲ص۵۷
- الانصاف ص۶
- مناقب موفق ص۷ج ۱ دا واقعه حاکم هم ذکر کړېده په معرفة علوم الحدیث کې صفحه ۱۹۸.
- المستصفی ج۲ ص۳۸۵.
- عقد الجید ص ۳۶
- عقد الجید ص ۳۹


دارالافتاء لغمان وریښمین تنګی

## باید څنګه او کومې خبرې وکړو؟

**استاذم محترم شیخ الاسلام مفتي محمدتقي عثماني حفظه الله فرمایي: چې زما والد مرحوم (مفتي اعظم مفتي محمدشفیع رحمه الله به فرمایل: کومه خبره چې کوې له هغې مخکې باید فکر وکړې چې که ددې خبرې په هکله زه عدالت او خارنوالی ته وغوښتل سم ایا دا خبره زه په ثبوت رسولی سم که نه؟ که دې په ثبوت رسولی سوه،بیا یې وکړه کنې مه یې کؤه؛ دا ځکه چې ددې دنیا ورها خوا یؤه بله دنیا سته او هلته خورا ستره او داسې خارنوالي او عدالت سته چې د عدل او انصاف پرته پکې بل څه نسته،هلته به د هر قول او عمل په اړه در څخه پوښتنه کیږي. الله دې راته د صحیح قول و عمل توفیق راکړي. آمین**

# د ذوالحجة د لومړی لسیزې فضائل

د اسلام سایټ څخه په مننه

که له یوه پلوه متعال خدای جل جلاله دي امت ته دنورو امتونو په پرتله مختصره اوکوتاه،زندګي ورکړي خو له بل پلوه یې ورسره بی ساري او عظیم احسانونه کړي چې په نورو امتونوکي هغه ډیر کم ترسترګو کیږی ، ددی سترو او لویو احسانونو له جملی نه یو داده چې الله تبارک وتعالی ددي اخیرني امت لپاره داسي خاص اوځانګړي مواقع اووختونه ټاکلي او پیدا کړي چې په هغو کي په ډیر کم بدني اویامالی عباداتو،متعال خدای (جل جلاله) خپل بنده ته بې شمیره اجرونه أو ثوابونه ور کوي او سبب دعفوي دزیاتو ګناهونو یې ګرزوي، دالله جل جلاله) دقرب او سبب دوصول د لازیاتونعمتونو اوهم سبب دخاتمي په ایمان ګرزوي ، اوپه دی سربیره ددنیا اواخرت نوري ګڼې منافع اوګټې په کښې نغښتي اوپرتي دي ،له همدي جملي نه یو هم دذي الحجة لمړی لسیزه ده ، چې الله رب العزت خپلو بندهګانوته په خپل مقدس کتاب قرأن کریم کي اوهم دخپل محبوب پیغمبرحضرت محمد صلي الله علیه و اله وسلم په خوله مبارک ښودلي دي ،اودیته یې هڅه ولي چې دغه مبارکي شپې دالله تعالی په عبادت په پوره خلوص اوتوجه دزړه سره ژوندي وساتي ، ترڅو مستحق اومصدر دزیات اجر اوثواب وګرزي ، فقهاؤدمذهب هم ددغو شپو عبادت مستحب بللی،کما ذکرفی کتب الفقه غیرمرة،فتاوی محمودیه۲/۳۳۵

وفي الحدیث ،عن ابن عباس رضی الله عنه )قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ، ما من ایام العمل الصالح فیهن احب الی الله من هذه الایام العشرة ، رواه البخاری.

ترجمه ،رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ،څومره چې نیک اعمال الله تعالی ته پدی لسو ورځو کی محبوب دې په نورو ورځو کی ورته دومره محبوب ندې ، مولانا رفعت قاسمی ددې حدیث په تشریح کی لیکی ، لکه څنګه چي دهفتی په اوو(۷) ورځو کی جمعه ، دکال په دولسو(۱۲) میاشتوکی روژه د روژي په درو (۳)عشرو کی اخېره عشره یو خاص فضیلت لری همدا شان الله تعالی دذي الحجة لومړی لس(۱۰) ورځي هم دفضل او رحمت خاص اوځانګړی ورځې ټاکلې دي حج یی هم په همدی ورځو کی مقرر کړی دی بهرحال دادالله تعالی درحمت یوه ځانګړی عشره ده په دی ورځو کی الله جل جلاله ) ته دبنده هرنیک عمل زیات محبوب اود الله په نزد ستر اوعظیم ارزښت لری ، رسایل مولانا رفعت ج۳-ص۱۱- بحواله معارف الحدیث ج۳-ص۴۱۷——

و روي عن معاذ بن جبل )رضی الله عنه (قال،قال رسول الله) صلی الله علیه وسلم ( قال من أحیأ اللیالي الخمس وجبت له الجنة لیلة الترویة ولیلة العرفة ولیلة النحرولیلةالفطرولیلة النصف من الشعبان ،رواه الاصفهاني الترغیب والترهیب۲۸۰ / ۱

ترجمه ، له معاذ بن جبل رضی الله عنه څخه روایت ده فرمایي چې رسول الله صلی الله وسلم وفرمائل،کوم څوک چې ژوندی کړي دغه پنځه(۵) شپی په عبادت سره دهغه لپاره به جنت واجب شی )له هغو پنځو شپو څخه یوه هم دترویي (یعنی د أتم شپه ده ،دویم، دعرفات شپه ده ،اودریم، دلویې أختر شپه ده ،او څلرم، دکوچنی أختر شپه ده ،او پنځمه ،پنځلسم (۱۵ ) دشعبان یعنی دبرات پنځلسمه شپه ده ... وایضا فی الحدیث ، عن ابی امامة رضی الله عنه )عن النبی صلی الله علیه وسلم ، من قام لیلتی العیدین محتسبا لم یمت قلبه یوم تموت القلوب ، رواه ابن ماجه ، الترغیب والتر هیب ج ۱-ص ۲۸۰ ].

ابی امامة رض) روایت کوی فرمایې رسول الله صلی الله علیه وسلم ، وفرمایل ، څوک چي داخترونو دواړې شپې داجر اوثواب په امید اوهیله په عبادت ژوندی کړي دهغه زړه به په هغه ورځ ونه مرې په کومه ورځ چې دخلګو زړونه (له ویری اوهیبت دقیامت ) مرې،

علماء فرمایي دقیامت ورځ هغه له هیبته او ویری ډکه ورځ ده چې خلګ به دزیاتې ویری له امله مرګ ته تر ژوند ترجیح ورکوی خو کوم څوک چې ددي ورځو په مبارکو شپو کي خپل زړه دالله تعالی په ذکر او عبادت ژوندی وساتي دقیامت په ورځ به ورته له مذکوره خوف اوویری آمن اوسکون ور په برخه شي ،،اللهم ثبت اقدامنا، علی الصراط یوم تز ل الا قدام ،وبیض وجوهنا یوم تسود الوجوه. امین



# پر پلار د زوی حقونه

عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته يو سړی راغی، ورسره خپل زوی ته يې اشاره وکړه او عمر ته يې وويل: دا زوی مې عاق دی يعني زما خبره نه مني، عمر يې زوی ته وويل: ته له الله نه، نه وېرېږې چې د خپل پلار نافرماني کوې؟! ځکه پلار دومره او دومره حقونه لري، زوی يې عمر ته وويل: اې امير المؤمنين! ايا زوی هم پر پلار حقونه لري؟

عمر رضي الله عنه ورته وويل: هو، زوی پر پلار حقونه لري او هغه دا چې بايد ښه مور ورته غوره کړي، څو يې خلک اولاد ته د مور پېغور ورنه کړي. بل دا چې پلار بايد ښه نوم پرې کېږدي او دريم حق يې دا دی چې بايد قران ورزده کړي، يعني علم وروښيي.

زوی يې عمر ته وويل: په الله قسم کوم چې پلار مې زما لپاره ښه مور نه ده غوره کړې، يوه سندۍ يې په څلور سوه درهمه اخيستې وه. او نه يې پر ما ښه نوم ايښی دی، بلکې پر ما يې جُعل (نر خفاش) نوم ايښی. او نه يې د قران يو ايت رازده کړی.

عمر رضي الله عنه يې پلار ته وکتل او ورته ويې ويل: ته وايې زوی مې خبره نه مني او عاق دی؟! هغه خو تا د هغه له عاق کيدلو مخکې عاق کړی دی، يعني تا اول هغه ته د هغه حقوق نه دي ورکړي، ولاړيږه ... البصائر في تذكير العشائر لمحمد عبدالحي السَّورَتيّ. تنبيه الغافلين لابي الليث السمرقندي ص٦٩}.



# Srak Magazine

